بسم الله الرحمن الرحيم

ورتل القرآن ترتيلا

# تحبیر التجوید

تالیف

شیخ القراءات قاری محمد ادریس العاصم

پښتو ترجمه

قاری فضل الحق حقیاني

الناشر

مکتبة القراءة والتجوید

کاسی روډ کوټه بلوچستان Mob: 0333-7808108

وَرَتِّلِ الْقُرْاٰنَ تَرْتِیْلًا

او تاسی قرآن مجید په ترتیل سره ولولئ

# تحبیر التجوید

حصہ ثانی

تالیف

شیخ القراءات قاری محمد ادریس العاصم مدظله

فاضل مدینه یونیورسټی

پښتو ترجمه

وتشریح

قاری فضل الحق حقانی

مدرس شعبۂ تجوید وقراءات جامعه تجوید القرآن سرکی روڈ کوئٹه

مکتبة القراءت والتجوید

کانسی روڈ کوئٹه

# ماولي د شيخ عاصم تحبير التجويد پښتو کړ

محترم مولوستونکو!
دا د علم تجويد ښکلی تحفه چې ستاسو په لاس ونو کی ده دا
زما د محترم استاذ شيخ القراءت قاري محمد ادريس العاصم
تصنيف دی. چې ما ورسره قراءات ثلاثه يعنی "دُرة" وئيلي
دَه.
هر کله چې ما وليده چې دده دا تصنيف ډېر مفيد کتاب وو او
زمونږ وطنوال ورسره په "اردو" نه پوهيدل ځکه نوما د نهايتي
مصروفياتو باوجود عزم وکړ چې په وطنی ژبه پښتو يې ترجمه کړم
چې الحمد لله دا ارمان پوره سو. هيله ده چې که چيری
زما څخه څه ای غلطی سوی وی وماته خبر ړ اکړی ترڅو يې بل
چاپ کی تدارك وکړل سی. او ماته يوائې يوائې د خاتمه بالخير
دعا وکړی:

احقر الانام فضل الحق حقانی بقلمه
مدرس شعبۀ تجويد و قراءات جامعه تجويد القرآن سرکی روڈ کوئٹہ

الناشر: مكتبة القرائت والتجويد
کانسی روڈ کوئٹه بلوچستان

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ط

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ وَالْعَاقِبَةُ لِلْمُتَّقِيْنَ ط وَالصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ عَلٰى سَيِّدِ الْمُرْسَلِيْنَ سَيِّدِنَا مُحَمَّدٍ وَّاٰلِهٖ وَاَصْحَابِهٖ اَجْمَعِيْنَ۔ امابعد:

# د تجوید څه ضروری اصطلاحات

**حرکاتِ ثلاثه** زور، زیر، پېښ ته په عربۍ کی حرکات ثلاثه ویل کیږی۔ او پر کوم حرف چی حرکت وی هغه ته متحرک ویل کیږی۔

**زور** زور ته په عربۍ کی فتحه او نصب ویل کیږی او پر کوم حرف چی زور وی هغه ته مفتوح او منصوب ویل کیږی۔

**زیر** زیر ته په عربۍ کی کسره او جر ویل کیږی، او پر کوم حرف باندی چی زیر وی هغه ته مکسور او مجرور ویل کیږی

**پېښ** پېښ ته په عربۍ کی ضمه او رفع ویل کیږی او پر کوم حرف باندی چی پېښ وی هغه ته مضموم او مرفوع ویل کیږی۔

**ساکن** پر کوم حرف باندی چی هیڅ حرکت نه وی هغه ته

ساکن ویل کیږی یعنی مجزوم وی لکه دقُل (۴۱)

**مُشَدَد** پر کوم حرف باندی چی شد وی یعنی دری غابنه علامه هغه ته مشدد ویل کیږی

**تنوین** دوه زوره - دوه زیره - اود وه پیښه ته تنوین والی داد نون تنوین علامه ده -

**دَ تجوید تعریف** د تجوید لغوی معنیٰ ده عمده اوښه کار کول - او د مجودینو په اِصطلاح کی هر حرف د خپله مخرجه تخه بیله څه تکلیفه سره د تولو صفاتو ادا کول =

**دَ تجوید موضُوع** د تجوید موضوع حروف هجاء -

**دَ تجوید غرض او مقصد** د تجوید غرض او مقصد تصحیح د حروفو ده ــ

**دَ تجوید فائده** د تجوید فائده د الله تعالیٰ رضا او خوشحالی اود دوا رجهانو کامیابی ده

**دَ تجوید واضعین** د دی فن وضع کونکی دوه قسمه دی -

(۱) **مِن حَیثُ الاَدَاءِ** - یعنی په ویلو سره ښوونکی هغه حضرت نبیّنا محمّد صلی الله علیه وسلّم دی - لکه څرنګه چی هغوی د حضرت جبرئیل علیه السّلام

څخه او رېدلي وه داغه رنګه د قواعدو مطابق وخپلو صحابه کرامو (رض) ته وروښوول. څرنګه چې هغوی اهل زبان وه ځکه نو هغوی ته د قواعدو ضرورت نه وو. هر کله چې اختلاط د عربو او عجمو راغلی نو د قواعدو ليکلو ضرورت پيښ سو. بيا قواعد راجمع کړه سوه

(۲) **مِنْ حَيْثُ الْقَوَاعِد** يعني د قواعدو د جمع کيدو په اعتبار په دی کی اختلاف دی۔

ابو الاسود الدؤلی يا ابو القاسم عبيد الله بن سلام. يا خليل ابن احمد الفراهيدي. يا د قرائت د امامانو څخه چا قواعد د قرائت جمع کړيدی. يا ابو مزاحم خاقانی يا موسیٰ ابن عبيد الله ابن خاقانی چې په سنه ۳۲۵ کی کړی دی۔

**د عِلمِ تجويد مرتبه**

د علم تجويد مرتبه داده چې دا علم افضل العلوم دی۔

ولی چې د دی علم تعلق د قرآن سره دی کوم چې تر ټولو کتابو نو افضل او اعلیٰ دی۔

**ارکان تجويد**

د علم تجويد څلور رکنونه دی

(۱) مخرجونه پيژندل (۲) د حروفو صفتونه پيژندل (۳) د حروفو حکونه پيژندل (۴) ژبه د حروفو د صحيح ادا کولو عادت جوړول ۔

**(يادونه)** داشی د حروفو په زيات مشق (تمرين)

کولو او د قرائت د ماهرینو څخه بغیر نه حاصلیږی ـ

## د تالیف سببونه

هر کله چې عرب او عجم په خپل منځ کې سره ګډ (خلط) سوه دګډوالی د علم تجوید د قواعدو لیکلو سبب وګرځیدی.

## د قرآن د تلاوت مرتبې

د قرآن د تلاوت کولو درې (۳) مرتبې دي ـ

**ترتیل** قرآن مجید په ډیر آسانی او اطمنان سره د مخرجونو او صفتونو د لحاظ سره ویلو ته لکه په جلسه او محفل کې دي ته ترتیل وائی ـ

**تدویر** قرآن کریم ترتیل څه تیز چابك او د تجوید د احکامو د لحاظ سره ویلو ته تدویر وائی لکه په جهری لمونځ کې ـ

**حدر** قرآن کریم د تجویدی قواعدو مطابق تر تدویر تیز (چابك) ویلو ته حدر وائی لکه په تراویح کې

## لحن

د لحن معنی غلطی ده د دی تعریف دا دی.

حروف د تجوید خلاف او غلط ادا کولو ته لحن ویل کیږی.

# دَلحن قِسمُونه

(۱) لحن جلی (۲) لحن خفی

## دَلحنِ جلی تعریف

دلحن جلی معنیٰ ده واضح او روښانه۔
د حروفو په مخرجونو، صفات لازمه و و او حرکاتو او سکناتو کی غلطی کولو ته لحن جلی ویل کیږی۔ او دا حرام دی۔

## دَلحن جلی قِسمُونه

دلحن جلی لاندی پنځه قسمُونه دی۔

(۱) د یو حرف په ځای بل حرف ویل۔ لکه دعَلِیمٌ پرځای اَلِیمٌ د اَلصَّیۡف پرځای اَلسَّیۡف د قَلۡبٌ پرځای کَلۡبٌ ویل۔

(۲) یو حرف د خپل اصل نه کموول لکه د وَلَاتَقۡرَبَا پرځای وَلَاتَقۡرَبَ دضَیۡفِیۡ پرځای ضَیۡفِ او دعَرَفُوۡا پرځای عَرَفُ ویل۔

(۳) یو حرف د خپل اصل نه زیاتول لکه۔ د نَعۡبُدُ پرځای نَعۡبُدُوۡا ویل۔ د نَسۡتَعِیۡنُ پرځای نَسۡتَاعِیۡنُ او د غَیۡرِ پرځای غَیۡرِیۡ ویل۔

(۴) د متحرك پرځای ساکن ویل او د ساکن پرځای

متحرك ويل لكه دا أَرْسَلْنَا پرځاى أَرسَلنَا ويـل ـ يا يو حركت د بل پرځاى ويل لكه دا أَنْعَمْتَ پرځاى أَنْعَمْتُ ويل يا أَنْعَمْتِ ويل ـ

(۵) د مشدد د پرځاى مخفف ويل يا د مخفف پرځاى مشدد ويل ـ لكه دا أَنَّ پرځاى أَنَ ويل د رَبِّ پرځاى رَبِ او د مِلَّةَ پرځاى مِلَةَ ويل ـ

## لحن خفى

د حروفو د حسن د پاره چې كوم صفتونه دي په هغو كې غلطي كولو ته لحن خفى ويل كيږي مثلاً د غنه كولو پرځاى نه كول ـ يا زور پلېښ والا را د لك ويلو پرځاى باريك ويل يا د لك لام باريك[1] ويل دا لحن خفى دى او دا مكروه دى ـ

---

[1] لحن خفى داسې پټه غلطي ده كوم چې لږ صرف قاريان محسوسه كړاى سي ـ عامو خلكو ته د هغې احساس نه سي كيدلاى ـ مثلاً اخفاء اقلاب وغيره يا داسې باريكه غلطي د كوم احساس چې صرف او صرف د قرائت ماهرينو ته كيدلاى سي ـ مثلاً د لك حرف ورسته الف باريك ويل ـ حركتونه ناقص اداكول غنه د يو الف څخه كمه يا زياته كولو ته لحن خفى ويل كيږي ـ د دې څخه ځان ساتل بكار دي ـ ولې چې په دې كې د الله جَلَّ جَلاَلُه د ناراضه كيدو ويره ده ۱۲

# د اَعُوذُ بِاللهِ او بِسۡمِ اللهِ بیان

هر کله چی د قرآن مجید تلاوت شروع کیږی نو هلته اَعُوذُ بِاللهِ مِنَ الشَّیۡطٰنِ الرَّجِیۡمِ ویل ضروری دی۔
که شروع د تلاوت د سورة د شروع څخه وی او که د سورة د منځ څخه وی۔

همدارنګه د سورة په شروع کی بِسۡمِ اللهِ ویل ضروری دی۔ ماسوا د سورة براءت څخه (توبه) که ابتداء تلاوت د سورة براءت څخه او که د تلاوت په منځ کی سوره براءت شروع سی۔ او که تلاوت د سورت د منځ څخه شروع سی بیا په بِسۡمِ اللهِ ویلو کی اختیار دی۔

تلاوت که چیری د سورت براءت څخه شروع کړل سی نو د بعض علماءِ په نزد د برکت حاصلولو د پاره بِسۡمِ اللهِ ویلای سی۔ لکن کله چی سورت اَنۡفَال ختم کړی سورت توبه شروع کړی نو بیا به بِسۡمِ اللهِ هیڅ کله نه وائی۔

په دی کی دری صورته جائز دی
(۱) فصل (۲) وصل (۳) سکته۔ دا دری صورته بیله بسم الله دی۔

---

د جمهور په نزد دی بسم الله نه وائی مګر اهوازی ابوالحسن سخاوی ابوالفتح بن سبط او غیرهم په نزد جائز دی ۱۲ الشر

## د دې کلام خلاصه

دکلام خلاصه دا سوه چې دابتداء درې قسمه ده
① ابتدائے تلاوت ابتداء سورت۔ دلته اَعُوذُ بِاللهِ او بِسۡمِ اللهِ دواړه ضروري دي۔
② ابتداء تلاوت درمیان سورت۔ دلته صرف اَعُوذُ بِاللهِ ضروري ده۔ او په بِسۡمِ اللهِ ویلو کې اختیار دی۔
③ ابتداء سورت درمیان تلاوت۔ دلته صرف بِسۡمِ اللهِ ویل ضروري دي[له]

## کړ د ابتداءِ تلاوت او ابتداءِ سورت

اَعُوذُ بِاللهِ او بِسۡمِ اللهِ ویلو څلور صورتونه دي۔
① اَعُوذُ بِاللهِ۔ بِسۡمِ اللهِ او سورت په جلاجلا ساه سره ویل چې دې ته فصل کُل ویل کیږي لکه اَعُوذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيۡطٰنِ الرَّجِيۡمِ ۞ بِسۡمِ اللهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ ۞ قُلۡ هُوَ اللهُ اَحَدٌ ۞

---

له دلته یعنې د هر سورت په شروع کې بِسۡمِ الله حُکمه ضروري ده چې د بِسۡمِ الله تعریف داغه دی۔ اٰیَةٌ فَاصِلَةٌ بَیۡنَ السُّورَتَیۡنِ۔ یو آیت دی چې د دوو سورتو جلاوالی راولي = فَضۡلُ الۡحَق حقاني غفرله۔

اللهم اغفر لکاتبه ولمن سعٰی فیه کتبهٗ بقلمه احقر العباد شاه ولی الله فهیم

(٢) اَعُوذُ بِاللّٰهِ ـ بِسْمِ اللّٰهِ او سورت په یوه ساه سره ویل چې دي ته وصل کُل ویل کیږي ـ لکه
اَعُوذُ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّیْطٰنِ الرَّجِیْمِ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ قُلْ هُوَ اللّٰهُ اَحَدٌ ط

(٣) اَعُوذُ بِاللّٰهِ په یوه جلا ساه سره ویل ـ او بِسْمِ اللّٰهِ او سورت په جلا ساه سره ویل چې دي ته فصل اول ـ وصل ثاني ثاني ویل کیږي لکه اَعُوذُ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّیْطٰنِ الرَّجِیْمِ ط بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ قُلْ هُوَ اللّٰهُ اَحَدٌ ط

(٤) اَعُوذُ بِاللّٰهِ او بِسْمِ اللّٰهِ په یوه ساه سره یوځای ویل او سورت په بل ساه سره ویل چې دي ته وصل اول فصل ثاني ویل کیږي لکه ـ اَعُوذُ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّیْطٰنِ الرَّجِیْمِ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ ط قُلْ هُوَ اللّٰهُ اَحَدٌ ط

## اوکه ابتدائے سورت د تلاوت په منځ کي وي

د اَعُوذُ بِاللّٰهِ او بِسْمِ اللّٰهِ ویلو دري صورتونه جائز دي او یو صورت ناجائز دی ـ

(١) د سورت آخر او بسم الله او دوهم سورة په جلا جلا سره ویل لکه ـ ثُمَّ لَتُسْئَلُنَّ یَوْمَئِذٍ عَنِ النَّعِیْمِ ه بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ ه وَالْعَصْرِ = چې ودي ته فصل کُل ویل کیږي ـ

(٢) د اول سورت اخر بسم الله او د دوهم سورت ابتدا سره

یوځای کول دری. سره په یوه ساه سره ویل لکه ثُمَّ لَتُسْئَلُنَّ یَوْمَئِذٍ عَنِ النَّعِیْمِ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ وَالْعَصْرِ چی ودی ته وصل کل و یل کیږی۔

(۳) داول سورت پراخیر باندی وقف کول بِسْمِ اللّٰه اودوهم سورت په یوه ساه سره ویل لکه ثُمَّ لَتُسْئَلُنَّ یَوْمَئِذٍ عَنِ النَّعِیْمِ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ وَالْعَصْرِ۔ چی ودی ته فصل اول وصل ثانی ویل کیږی۔

۴ داول سورت اخیر اوبِسْمِ اللّٰه په یوه ساه سره اودوهم سورت شروع په بل ساه سره ناجائزدی۔ لکه ثُمَّ لَتُسْئَلُنَّ یَوْمَئِذٍ عَنِ النَّعِیْمِ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ وَالْعَصْرِ۔ چی ودی ته وصل اول فصل ثانی ویل کیږی۔ داصورت له درو وجهی ناجائزدی ولی چی دبِسْمِ اللّٰه تعلق د راتلونکی سورت سره ده۔ او د وصل اول فصل ثانی څخه د دی خبری گمان کیږی چی دبِسْمِ اللّٰه تعلق دمخکی سورت سره دی

---

اوکه ابتداءِ تلاوت دسورت په منځ کی وی بیا دَاَعُوْذُ بِاللّٰه اوبِسْمِ اللّٰه ویلو ۲ دوه صورته جائز اودوه صورته ناجائزدی ولی چی په دی صورت کی اَعُوْذُ بِاللّٰه ضروری ده اوکه بِسْمِ اللّٰه هم ووائی نو دوه صورته جائزدی اودوه ناجائزدی۔

(۱) اَعُوْذُ بِاللّٰهِ بِسْمِ اللّٰه اوایت په جلا جلا ساه سره ویل چی

ودی ته فصل کُل ویل کیږی۔

(۲) اَعُوذُ بِاللهِ اوبِسۡمِ اللهِ په یوه ساه سره ویل او ایت په دوهم ساه سره ویل چې ودی ته فصل اول فصل ثانی ویل کیږی دا دوه صورتونه جائز دی۔ یا ته دوه صورتونه یعنی وصل کُل فصل اول وصل ثانی نا جائز دی۔ او که بِسۡمِ اللهِ والئ بیا اَعُوذُ بِاللهِ دا ایت سره وصل او فصل دواړه جائز دی۔

د وصل په وخت کی دا یاد ساتل پکار دی چې د شروع کیدونکی ایت په شروع کی به دالله تعالیٰ ذاتی یا صفاتی نوم نوخخه یو نوم نه وی مثلاً اَللهُ یَعۡلَمُ مَا تَحۡمِلُ کُلُّ اُنۡثیٰ۔ یا اَلرَّحۡمٰنُ عَلَی الۡعَرۡشِ اسۡتَوٰی۔

# دغابښونوبیان

داکثرو مخرجونو تعلق دغابښونو سره دی ځکه نو د مخارج الحروف څخه مخکی دغابښونو نومونه بیانیږی د دی د پاره چې بیا د مخرجونو په پیژندلو کی مشکل را نه سی۔ د انسان په خوله کی عموماً (۳۲) دوديرش غابښونه وی۔ ۱٦ شپاړس غابښونه په لوړه زامه کی او شپاړس غابښونه په لاندی زامه کی کوم چې شل د زامی غابښونه دی او دوولس[۱۲] د وړیو غابښونه دی۔

| دوړیوغابښونه | اَوَلُو څلورو غابښونو ته ثنایا |
|---|---|

والئ ۔ ثنایا عُلیا ۔ د مخ دوه لور غابښونه ۔ ثنایا سفلیٰ د مخ دوه لاندې غابښونه ۔ رَبَاعِیات یا قواطع ۔ د ثنایا سره متصل هر طرفته یو یو غابښ دی پورته کښته ۔ چې ټوله څلور غابښونه دي) مترجم ۔

انیاب یا کواسر ۔ د رباعیات سره متصل یو یو غابښ راسته طرفته او چپه طرفته (چې ټوله څلور غابښونه دي) مترجم ۔

## د زامې غابښونه

**ضَواحِك** دا انیاب سره متصل هر طرفته (یعنې چپه او راسته) پورته کښته یو یو غابښ ته ضَواحك والئ ۔ چې ټوله څلور غابښونه دي) مترجم

**طَواحن** د ضواحك سره متصل هر طرفته پورته کښته درې درې غابښونه وي هغوی ته طواحن ویل کېږي

**نَواجذ** د طواحن سره متصل یو یو غابښ دي راسته او چپه طرفته هغوته نواجذ والئ ۔

**فائده** = د زامې غابښونه په عربي کې اضراس والئ ۔ اضراس جمع د ضرس ده او ضواحك طواحن او نواجذ ته مطلقًا ضراس والئ ۔

الناشر
مَکتَبَةُ القِرَاءَةِ وَالتَّجوِیدِ
کاسي روډ نزد مسجد نور کوئټه

# دحروفو دمخرجونو بيان

مخارج د مخرج جمع ده۔ د هغه معنی ده د وتلو ځای۔

**دمخرج تعریف** د مجودینو په اصطلاح کی د حرف د اداکولو په وخت کی پرکوم ځای چی آواز ودریږی هغوی ته مخرج ویل کیږی =

مخرج پر دوه قسمه دی۔ (۱) محقق (۲) مقدر

**مخرج محقق** هرکله چی د حلق ژبی او شونډو په یوه معلوم ځای آواز اعتماد وکړی هغه ته مخرج محقق ویل کیږی۔

**مخرج مقدر** هرکله چی د حلق ژبی او شونډو په معلومو اجزاوو آواز اعتماد و نه کړی هغه ته مخرج مقدر ویل کیږی لکه جوف دهن۔ او خیشوم

د مخرجونو په شمار کښی اختلاف دی محقق او مختاره مذهب دا دی چی د حروفِ هجاء مخرجونه (۱۷) اولس دي۔

د مخرجونو اصول پنځه دي۔

(۱) حلق (۲) لسان (۳) شونډان (۴) جوف دهن (۵) خیشوم

## اوَّل اصل

**حلق** په دی اول اصل کی دری مخرجونه او شپږ حروفه

**اول مخرج** اقصیٰ حلق یعنی د حلق هغه اخری حصه کوم چی د ځگر سره یوځای دی۔ د دی ځخه دوه حروف اداکیږی همزه او هاء ہوز

**دوهم مخرج** وسط حلق یعنی د حلق د منځ حصه د دي ځخه دوه حرفه اداکیږی، ع، او ح، بی تکی

**دریم مخرج** ادنیٰ حلق یعنی د حلق هغه حصه کوم چی د خولې و خواته ده د دي ځخه دوه حروف اداکیږی، غ، او خ، ټکی والا دي شپږو حروفو ته حروف حلقی ویل کیږی [۱]

## دوهم اصل

**ژبه** په دی دوهم اصل کی لس [۱] مخرجونه او [۱۸] اتلس حروف دي۔

**څلورم مخرج** د ژبی بیخ د کښنی ژبی سره متصل او لور تالو ځخه، ق اداکیږی۔

---

[۱] د دي حروفو نه حروف اظهار هم ویل کیږی ولی چی هر کله چی د ساکن نون او تنوین وروسته دا حروف راسی هلته اخفاء او غنه نه کیږی بلکه اظهار کیږی ۱۲ احقر فضل الحق حقانی عفرله۔ الراقم فهیم

**پنځم مخرج** د کشنی ژبې سره متصل د خولې وخواته الاندې د ژبې او پورته تالو څخه (ك) ادا کیږي - دې دوارو حروفوته لهاتیه ویل کیږي.

**شپږم مخرج** د ژبې د منځ حصه او د دې مقابل پورته تالو د دې څخه - ج - ش - او ي -

هر کله چې متحرکه اولین وي اداکیږي -

**اووم مخرج** د ژبې څنډه (څوکه) او پورته پنځه غابښونو بیخونه د ضواحك څخه تر نواجذ پورې - د راسته یا چپه طرف څخه - ضاد - اداکیږي او دې حرف ته په اعتبار د مخرج حافیه ویل کیږي

**اتم مخرج** د ژبې کناره سره د ژبې د حافه کله چې د ثنایا رباعي - انیاب او ضواحك د دواړو سره یوځای سي د هغه څخه . ل . اداکیږي -

---

له لهات په عربي کې هغه کشنی حلقي ژبې ته ویل کیږي - لهات په حلق کې یوه کشنی ټکړه ده کوم چې د حلق د لوړې خواته ځړیږي داد لوړې خوا څخه پنده او سرلې ئي دي د ی ته په عربي کې (لسان الصغير) ویل کیږي -
٢ه پرکومې یاء باندې چې حرکت وي هغې ته یاء متحرکه ویل کیږي لکه یُوقِنُونَ او که یاء ساکن ماقبل فتحه وي هغه ته یاء لین ویل کیږي لکه اَیْنَ ٢

**نهم مخرج** د ژبې کناره کله چې د ثنايا، رباعي، او انياب دورېو سره ولگېږي د هغه څخه «ن» اداکېږي

**لسم مخرج** د ژبې کناره سره د ظهر اللسان هرکله چې د ثنايا رباعي دورېو سره ولگېږي د هغه څخه «را» اداکېږي - ل، ر، ن، حروف طرفيه او ذلقيه ويل کېږي -

(۴) د طرف او ذلق يوه معنی ده يعني د ژبې کناره -

**يوولسم مخرج** د ژبې سر او د ثنايا عليا د بيخو څخه درې حروف اداکېږي، ط، د، ت، دې حروفو ته په اعتبار د مخرج حروف نِطعيّه ويل کېږي

---

له په عربي ژبه کې شجر د داړو ترمنځ کې خالي ځای ته ويل کېږي څرنگه چې دا حروف د خولې د منځ خالي حصې څخه اداکېږي د دې وجهې څخه دې حروفو ته حروف شجريه ويل کېږي

۲ له ضاد د ژبې سر او د مخ د غاښونو څخه اداکول بالکل غلط دی

۳ له حافه د ژبې هغه حصې ته ويل کېږي کوم چې د لوړو غاښونو سره لگېږي -

خلاصه دا چې د ژبې سر ته رأس اللسان او بيا د رأس اللسان څخه کوم طرفونه چې تر ضواحکو پورې لگېږي طرف اللسان او د ضواحکو څخه حافه شروع کېږي او آخري حصې ته اقصی اللسان او منتهی اللسان ويل کېږي ۱۲

۴ له نِطع په عربي کې هغه کښتنی کښتنی غاړو ته ويل کېږي کوم چې په لوړ تالو کې د غاښونو د بيخو سره نژدې واقع دي - احقر فضل الحق حقاني غفر له الباري -

**دوولسم مخرج** دژبې سر او دثنایا علیا د کنارے څخه دری حروف اداکیږی، ظ ـ ذ ـ ث ـ دی حروفو ته په اعتبار د مخرج لِثَوِیَّه ویل کیږی ـ

**دیارلسم مخرج** دژبې سر او دثنایا سفلیٰ کناره سره داتصال دثنایا علیا د دی څخه دری حروفه ادا کیږی ص ـ ز ـ س ـ په اعتبار د مخرج د دی ته اَسَلِیَّه ویل کیږی

## دریم اصل

**شُونډان** = په دی کې دوه مخرجونه او څلور حروف دی.

**څوارلسم مخرج** دلاندی شونډی لنده حصه او دثنایا علیا کناره دهغه څخه ـ (ف) اداکیږی ـ

**پنځلسم مخرج** دواړه شونډی دي. دهغه څخه ـ ب. م ـ او "واو" متحرك او لین اداکیږی ـ

ب د دواړو شونډو دلاندې حصه څخه او میم د دواړو شونډو دوچی حصه څخه اداکیږی ـ او واو د دواړو شونډو د نا تمام

---

ـله بعض مصنفینو دفا مخرج مطلق شونډی لیکلی دی ـ دا یاد ساتی چی دشونډو دوی حصی دی ـ یوه لنده حصه کوم چی دخولی وخواته ده او دوهمه وچه حصه ده کوم چی دخولی څخه دباندی ده ـ د مطلق شونډی ویلو څخه کدچا ـ ف ـ دهغه وچه طرف څخه اداکړه نو اغلطه ده لهٰذا (لندوالی) قید ضروری دی ـ

یوځای والي څخه ادا کیږی۔ ب۔ واو۔ میم۔ او فاته حروفِ شفویه ویل کیږی۔[1]

## څلرم اصل

**جوف دهن** یعنی دخولی هغه پوره خالی حصه ددی څخه دری حروف ادا کیږی الف، واو، ی۔ هر کله چې دا دری مده وی۔ یعنی واو ساکن ماقبل مضموم لکه قُوْلُوْا۔ ی۔ ساکن ماقبل مکسور لکه اجْرِیْ۔ الف۔ ساکن بی جهتکی ماقبل مفتوح لکه "حَالَ" دا دری حروفو ته حروف مده جوفیه هوائیه ویل کیږی۔

## یادونه

**نصب** ← په عربی کی زورته ویل کیږی

**رفع** = په عربی کی پیښ ته ویل کیږی۔

**جر** = په عربی کی زیرته ویل کیږی۔

**ساکن** = هغه حرف ته ویل کیږی پر کوم باندی چی هیڅ حرکت نه وی

**متحرك** = هغه حرف ته ویل کیږی پر کوم چی حرکت وی۔

---

[1] شفت په عربی کی شونډو ته ویل کیږی۔ د واو دری حالتونه دی مده۔ لین۔ متحرك، هر کله چی واو ساکن ماقبل یه مضموم وی هغه واو مده ویل کیږی لکه قُوْلُوْا او که او که واو ساکن ماقبل مفتوح وی نو هغه ته واو لین ویل کیږی لکه قَوْلٌ او که پر واو باند حرکت وی هغه ته متحرك ویل کیږی لکه وَمَا هُمْ لِهٰذَا د شونډو څخه واو لین او متحرك ادا کیږی۔ از احقر فضل الحق حقانی غفر له۔

# پنځم اصل

## خیشوم

یعنی د پزې هغه د ننه نرم رګ دی د هغه څخه غنه ادا کیږی او د انون او میم ذاتی صفت او په هر حال کی پیدا کیږی

## د حروفو د صفتونو بیان

صفات د صِفَةٌ جمع ده چې د هغه معنیٰ ده حالت او کیفیت۔

## د صفت تعریف

حرف د مخرج څخه دادا کولو په وخت کی چې کوم حالت حرف ته لاحق کیږی هغه ته صفت ویل کیږی مثلاً د آواز پورته کیدل یا کښته کیدل۔ نرم کیدل۔ یا سخت کیدل او د اواز دکیدل یا نور۔

## صفتونه پر دوه قسمه دی

(۱) صفات لازمه (۲) صفات عارضه

## د صفات لازمه تعریف

د اسی صفتونه چې په هر وخت او هر حال کی په حروفو کی پیدا کیږی۔ او که چیری دا صفتونه اداء نه سی نو هغه حرف نه پاته کیږی بلکه په بل حرف سره بدلیږی یا ناقص ادا کیږی۔ اللهم اغفر لکاتبه ولوالدیه

# لازمه صفتونه پر دوه قسمه دی

(۱) لازمه متضاده (۲) لازمه غیر متضاده

**د متضاده تعریف** متضاده صفتونه د مقابل داسی دوو صفتونو ویل کیږی چه نه دواړه صفتونه په یوه حرف کښې جمع کیدای سی او نه هیڅ حرف د دوی څخه خالی پاته کیدای سی متضاده صفتونه لس[۱] دی۔

## د لازمه متضاده صفتونو تفصیل

**د همس صفت** د همس معنی کښته والی او ضعف دی۔ او په کومو حروفو کښی چه دا صفت پیدا سی هغوته مهموسه ویل کیږی تعریف یه دا دی چی د دی حرفونو د ادا کیدو په وخت کښی آواز د دوی په مخرج کی په داسی ضعف سره ودریږی چه ساه جاری وی او په آواز کی کښته والی وی لکه د یلحث ثه۔

داسی حروف لس[۱] دی چی مجموعه یه ده فحثه شخص سکت

[۱] لازمه صفاتوته ممیزه مقومه او ذاتیه هم ویل کیږی

## د جهر صفت

د جهر معنیٰ ده لوړ والی او په کوموحروفو کی چی دا صفت پیدا سی هغوته مجهوره ویل کیږی۔ تعریف یه دادئ۔ چی د حروفو دا کیدو په وخت کی اواز دوی په مخرج کی په داسی زور سره و د ریږی چی ساه بند سی لکه د کَسَبَ با۔ د لس[10] حروفِ مهموسه ماسوا پاته ۱۹ نولس حروف مجهوره دی

## ۳ صفت شدت

د شدت معنیٰ ده سختی او قوت او په کوموحروفو کی چی دا صفت پیدا سی هغوته شدیده ویل کیږی۔ تعریف یه دادی چی د دی حروفو دا کولو په وخت کی اواز په خپل مخرج کی په داسی سختی او قوت سره و د ریږی چی اواز بند سی لکه د اَحَدُ دال۔ حروف شدیده اته دی چی مجموعه یه ده اَجِدُ قَطٍ بَکَتْ۔

## ۴ صِفت رِخوت

د رخوت معنیٰ ده نرمی۔ او په کوموحروفو کی چی دا صفت پیدا سی هغوته رخوه ویل کیږی تعریف یه دادی چی د دی حروفو دا کولو په وخت کی اواز په خپل مخرج کی په نرمی سره و د ریږی او آواز جاری وی لکه د لَتُسْئَلُنَّ سین

---

له مو ږ د شیخ محمد مکی نصر د معتبر کتاب النهایة القول المفید د صفات لازمه وو مجموعات یو ځای کړی۔ د صفت جهر د نولس حروفو مجموعه داده۔

عَظُمَ، وَزْنُ، قَارِئٍ، ذِی، غَضٍ، جَدٍّ طَلَبٍ۔ اللهم اغفر لکاتبه ولوالدیه

د شدت ضد او مقابل رخوت دی - د اته شدیده او پنځه متوسطه
علاوه پاته شپارس حروف رخوه دي -

## توسط

د توسط معنیٰ ده بَین بَین یعنی درمیانه او په کومو
حروفو کی چی دا صفت پیدا اسی هغوته متوسطه ویل
کیږی - تعریف یه دادی چی د حروفو دادا کولو په وخت کی اواز د وی
په مخرج کی نه پوره جاری او نه پوره بند وی بلکه په یو درمیانی حالت
کی وی او دا سی پنځه حروف دی چی مجموعه یه لِنْ عُمَرَ دَه -

## ۵ صفت استعلا

د استعلاء لغوی معنیٰ ده لوړوالی - او
لوړ طرفته پورته کول په کومو حروفو
کمی چی دا صفت پیدا اسی هغوته حروفِ مستعلیه ویل کیږی -
تعریف د دی صفت دادی چی د دی حروفو دادا کولو په وخت کی د ژبی بیخ
د لوړ تالو طرفته پورته کیږی - د کوم له وجمی څخه چی دا حروف دك
ویل کیږی مثلاً د قَالَ قاف دا سی حروف اوه دي، خُصَّ ضَغْطٍ قِظْ -

## ۶ صفت استفال

د استفال معنیٰ ده کښته کیدل او په کومو حرو
فو کی چی دا صفت پیدا اسی هغوته مستفله ویل
کیږی - تعریف یه دادی چی د دي حروفو دادا کید و په وخت کی د ژبی بیخ
لوړ تالو ته نه پورته کیږی بلکه لاندی وی - د دی سببه دا حروف
باریک ویل کیږی مثلاً د حِیَلَ لام - دا و مستعلیه علاوه پاته ټول

---

له حروف استفال حروف دی چی یه ده، ثَبَتَ عِزُّ مَنْ یَجُوْدُ حَرْفَهُ اِذْ سَلَّ شَکَا - اللهم اغفر لکاتبه

حروف مستفله دي۔ استعلاء او استفال هم يو د بل سره ضد دي۔

## ۷ صفت اطباق

د اطباق لغوي معنیٰ ده منبسليدل او بنه بنديدل او په کوم حروفو کي چي دا صفت پيدا سي هغو ته مطبقه ويل کيږي۔ تعريف يه دادي چي د دې حروفو ادا کيدو په وخت کي د ژبې منځ د لوړ تالو سره بنه يوځاى کيږي د کوم له سببه چي دا حروف بنه ډك ويل کيږي مثلاً د تَطَّلِعُ طاء۔

حروف مطبقه څلور دي، ص، ض، ط، ظ۔

## ۸ صفت انفتاح

د انفتاح معنیٰ ده خلاصول او جلا کيدل او په کوم حروفو کي چي دا صفت پيدا سي هغو ته حروف منفتحه ويل کيږي۔ تعريف يه دادي چي د دې حروفو ادا کولو په وخت کي د ژبې منځ د پورته تالو څخه جلا وي۔ د کوم له سببه چي دا حروف باريک ادا کيږي لکه د قُلْ لام د مطبقه څخه علاوه پاته ۲۵ پنځه ويشت حرفونه منفتحه دي۔ دا دواړه صفتونه يو د بل سره ضد او مقابل دي۔

## ۹ صفت اذلاق

د اذلاق معنیٰ ده کناره او طرف په کومو حروفو کي چي دا صفت پيدا سي هغوته مذلقه وائي۔ تعريف يه دادي چي دا حروف د شوندو او ژبې د کناري څخه ډير ژر او په آساني سره ادا کيږي لکه د فِيْ فاء۔ دا سي حروف شپږ دي کوم چي په فَرَّمِنْ لُبِّ کي جمع دي۔

## ۱۰ صفت اِصمات

د اصمات معنیٰ ده منع کول او د ریدل۔ او په کوم حروفو کی چی دا صفت پیدا اسی هغوته مصمتہ وائی۔ تعریف یه دادی چی دا حروف د خپلو مخرجو نو څخه په مضبوطی او سختی سره ادا کیږی لکه دا اِذ، ذال۔ د مذلقه څخه علاوه پاته ۲۳[1] حروفونه مصمتة دی او دا دواړه صفتونه هم دلوړو مخکنی صفتونو په څیر یو د بل سره ضد او مقابل دي۔ دلته د صفات لازمه متضاده وو بیان ختم سو۔ او په هر حرف کی پنځه صفتونه ضروری پیدا کیږی۔

اَلنَّاشِر

مَکتَبَۃُ القِرأۃِ وَالتجوید

کانسی روڈ کوئٹہ

---

[1] د صفت اصمات د پر رویشت حروفو مجموعه داده۔

جُزْ غَشَّ سَاخِطٍ صِدْ ثِقَۃً اِذْ وَعْظُہٗ یَحُضُّکَ۔ کتبہ شاہ ولی اللّٰہ فہیم

محقق

# دَصفات لازمہ غیر متضادہ بیان

## دغیرِ متضادہ تعریف

دحروفو هغه لازمی او ضروری صفتونه دی کوم چې په حروفو کې د هغو پیدا کیدل لازمی دی. لکن خپل د مفهوم په اعتبار سره یو د بل څخه بالکل جلاوي، ضدیت او تقابل هیڅ کله په کښې نه وي۔
صفات لازمہ غیر متضادہ اته صفتونه دي۔ او دا صفتونه په بعض حروفو کې وي او په بعضو کې نه وي۔

## ۱ صفت قلقله

د قلقلې معنیٰ ده حرکت ورکول او ښورول او په کومو حروفو کې چې دا صفت پیدا سي هغو ته حروف قَلقلَہ ویل کیږي۔ تعریف یې دادی۔ چې د دی حروفو ادا کیدو په وخت کې[له] د سکون په حالت کې د دی حروفو مخرج ته حرکت ورکول کیږي مثلاً د حَطَبُ باء۔ او دا سې حروف پنځه دي چې مجموعہ یې ده قَدُ طَبَجُ ۔

## ۲ صفت صَفیر

د صفیر معنیٰ ده تیز شپیلکې۔ او په

---

له د سکون د وخت څخه دا مطلب نه دی که چیری متحرک وه نو په هغو کې د قلقلې صفت نه پیدا کیږي بلکه دا صفتِ لازمه دی په حروف قلقله کې هر وخت او په هر حال کې پیدا کیږي۔ لکن د سکون او وقف په حالت کې زیات محسوس کیږي او په متحرکو کې هم کم محسوس کیږي ولې چې د حرکت له سببه په حرف کې حرکت له مخه څخه موجود وي ۱۲

کوموحروفوکی چی داصفت پیداسی هغو حروفوته صفیریه ویل کیږی - تعریف یه دادی چی ددی حروفو داداکید و په وخت کی یو تیز آوازپه مثل دشپیلکی ووځی - مثلاً د اَحْسَنَ سین او دا صفت په درې حروفو کی پیداکیږی - ص، ز، س -

۳ صفت لین

دلین معنیٰ ده نرمی - او په کوموحروفو کی چی دا صفت پیداسی هغوته حروف لِین ویل کیږی - تعریف یه دادی چی ددی حروفو داداکید و په وخت کی داسی نرمی پیداکیږی چه کچیری څوک مَدکول وغواړی کولای ئیسی - او دا صفت په دوو حروفو کی پیدا کیږی واولین اویائے لین - دواو ساکن ماقبل مفتوح مثال لکه حَوْلَہٗ .غَوْلٌ - او دیاء ساکن مثال لکه کَیْفَ وَیْلٌ اولور -

۴ صفت انحراف

دانحراف معنیٰ ده اړول اومائل کیدل - او په کوموحروفو کی چی دا صفت پیداسی هغوته حروف منحرفه ویل کیږی - او داسی حروف ۲ دوه دي - ل، ر، مثلاً دالْاَرْضَ - لام - او راء - تعریف یه دادی چی ددی حروفو داداکیدو په وخت کی دژبی کناره دَبل حرف وطرفته مائله کیږی یعنی دلام داکیدو په وخت کی دژبی کناره دراد مخرج وخواته اودراءداداکید و په و نت کی دلام دمخرج وطرفته مائله کیږی -

۵ صفت تکریر

دتکریر معنیٰ ده یوشی تکرارول پله پله

کیدل او په کوموحرو فوکی چی دا صفت پیداسی هغوته حرف مکررویل کیږی۔ تعریف یه دادی چی د دی حرف دا داکیدو په خت کی پرژبه باندی یوقسم لړزه ریزدیدل راځی۔ دکوم ځخه چی په اواز کی دتکرار مشابهت پیداکیږی او دا صفت صرف په راکی پیداکیږی لکه دا رُسُلَ۔ را۔

## ۶ صفت تفشی

دتفشی معنیٰ ده پاشل او غوړول۔ ۶ او په کوموحرو فوکی چی دا صفت پیداسی هغوته حروفِ متفشیه ویل کیږی۔ تعریف یه دادی چی ددی حروفو دادا په وخت کی اواز په خپل مخرج کی پاشل کیږی۔ او دا صفت صرف دشین دی لکه د اَلقُرَیشٍ۔ شین۔

## ۷ غُنّٰه

غنه دپزی دننه دآواز لوړ دی او دا صفت په نون او میم کی هروخت پیداکیږی هرکله چی دوی دخپل مخرج ځخه اداکیږی لوآ از پیله اِړادی او قصده پزی ته داخلیږی په دی حالت کی دوی ته حروف غنه ویل کیږی۔ د دے تفصیل دنون او میم په قاعدو کښی راځی۔

## ۸ صفت استطالت

د استطالت معنیٰ ده اوږدول او په کوم حرف کی چی دا صفت پیداسی هغه ته مستطیله ویل کیږی۔ تعریف یه دادی چی د دی حرف دادا کیدو په وخت کی دحافه لسان دشروع ځخه دحافه لسان تر آخره پوری آواز اوږدیږی مثلاً د

د اَلضَّآلِّیْنَ، ضاد او د اصفت صرف په ضاد تکی دارګی پیدا کیږي

## آګاهي

د ضاد د حرف او زد والی د حرف مده څخه کم او د حرکت د مقدار څخه زیاته کیږي۔ ضاد، دال یا د دال مشابه ویل یا ظاء ویل بالکل غلط دی۔ البته که چیری د هغه د صحیح مخرج څخه سره د ټولو صفاتو ادا کول سره او از بیله قصده د ظاء مشابه کیږی د دال مشابه بالکل نه کیږی۔

**فائده نمبر ۱** په هر حرف کی کم له کم پنځه صفتونه او زیات اوه صفتونه پیدا کیږی۔

**فائده نمبر ۲** د صفات لازمه وو څخه

جهر ۱، شدت ۲، استعلاء ۳، اطباق ۴،

اصمات ۵، صفیر ۶، قلقله ۷، انحراف ۸،

تکریر ۹، تفشی ۱۰، استطالت ۱۱، او غنه ۱۲،

دوولس صفتونه قوی دي۔ پاته شپږ صفتونه۔ همس ۱، رخوت ۲، استفال ۳ انفتاح ۴ اذلاق ۵ او لین ۶ ضعیف صفتونه دي

# دَصفات عَارضَه وُ بیَان

**دعَارضَه صفَتونو تعریف** عارضه صفتونه هغو صفتونه ویل کیږي کوم چې په حروفو کې په کله پیدا کیږي او کله کله نه پیدا کیږي۔ او که چیري دا صفتونه ادا نه سي نو حرف هغه حرف پاته کیږي لکن د هغه شایست نه پاته کیږي۔

## په عَارضي او لازمي صفَتونو کې بنیَادي فرق

(۱) د لازمه صفتونو غلطي په لحن او د عارضه صفتونو غلطي په لحن خفي کې داخله ده

(۲) د لازمه صفتونو پیدا کیدل پر یو سبب باندي موقوف نه دي او د عارضه صفتونو پیدا کیدل پر سبب باندي موقوف دي

(۳) لازمه صفتونه په ټولو حروفو کې پیدا کیږي۔ او صفات عارضه په بعض حروفو کې پیدا کیږي او په بعض حروفو کې نه پیدا کیږي

(۴) لازمه صفتونه په حروفو کې هر وخت او په هر حال کې پیدا کیږي او عارضه صفتونه په حروفو کې کله پیدا کیږي او کله نه پیدا کیږي

له لازمه صفتونو ته لازمه ممیزه مقومه ذاتیه ویل کیږي او عارضه صفتونو نه عارضه محسنه محلیه مزینه ویل کیږي۔

د مُجوّدینُو په نزد عارضه صفتونه دا دي۔
(۱)۔ تفخیم، (۲)۔ ترقیق، (۳)۔ ادغام، (۴)۔ اقلاب (۵)۔ اخفاء، (۶)۔ غنه زمانی (۷)۔ صله، (۸)۔ تسهیل، (۹)۔ ابدال، (۱۰)۔ حذف، (۱۱)۔ مد فرعی۔

## دَ تفخیم اوترقیق بیان

د لام د دک والی قاعدي۔

**تفخیم** د الله په لام کی تفخیم او ترقیق کیزی۔ که چیری د الله د لفظ څخه مخکی زَوَر یا پیښ وی ملته د لفظ الله لام دک ویل کیزی۔ چی دی ته تفخیم ویل کیزی لکه خَتَمَ اللّٰهُ کَلَّمَ اللّٰهُ۔ رَسُوْلُ اللّٰهِ۔ یَدُ اللّٰه۔ همدا رنګه د اَللّٰهُمَّ تر لفظ مخکی که چیری زَوَر یا پیښ وُ ونو هغه دک ویل پکاردی لکه مَرْیَمَ اللّٰهُمَّ۔ قَالُوا اللّٰهُمَّ۔

**ترقیق** که چیری د الله د لفظ یا اَللّٰهُمَّ مخکی زیر وی نو هغه لام باریک ویل پکاردی لکه یُوَفِّقِ اللّٰهُ۔ سَبِیْلِ اللّٰهِ۔ قُلِ اللّٰهُمَّ او دی ته ترقیق ویل کیزی

## دَ «راء» دَ دک اَو بَاریک ویلو قاعدي

د راء د ۳ ری حالته دي۔

## (۱) تفخیم (۲) ترقیق (۳) مختلفٌ فیه

په دولس حالتونو کی راء که ویل کیږی۔ او په اوه حالتونو کی باریکه ویل کیږی۔ او په اوه کلمو کی ډک والی او باریک والی دواړه جائز دی

**تفخیم** ۱ په دی لاندی دوولس حایه کی راء که ویل کیږی

(۱) هر کله چی پر راباندی زور وی لکه نَصَرَكُمُ ۹ سپاره سورة اعراف۔

(۲) هر کله چی پر راباندی پیښ وی لکه مَكَرُوا ۱۳ سپاره ابراهیم

(۳) پر مشدده راباندی چی زور وی لکه سِرًّا وَعَلَانِيَةً ۱۳ سپاره الرعد

(۴) چی پر راءِ مشدده باندی پیښ وی لکه شَرٌّ ۱۹ سپاره فرقان

(۵) چی راساکنه او مختهٔ ئ زور وی لکه زَرْعٌ وَّنَخِيلٌ ۱۳ سپاره الرعد

(۶) راء چی ساکنه او ماقبل ئ پیښ وی لکه لَخُرْطُوْمِ ۲۹ سپاره القلم

(۷) چی هر کله راساکنه او مخته یه عارضی زیر وی لکه اِرْتَبْتُمْ ۷ سپاره مائدہ

(۸) چی راساکنه او مخته زیر په بله کلمه کی وی لکه مَنِ ارْتَضٰى ۲۹ سپاره الجن

(۹) هر کله چی راء ساکنه مخته یه زیر وی او وروسته حروف مستعلیه

---

تنبیه راء چی مشدده وی د مجودینو په نزد دیوی راء په حکم کی ده۔ او د خپل حرکت موافق که یا باریکه ویل کیږی۔ بعض ناواقفه دا مشدده۔ را۔ دوی، را ،گانی بولی اَوْ اَوَله ساکنه د ساکنی په قاعده کی شمیری د کیا باریکه ئ وائی دا غلطه ده او که چیری دوی ئ هم شمار کړلسی بیا نو بوله دو هم تابع ده۔

په داغه کلمه کې وي لکه قِرطَاسٍ ۷ سپاره سورة انعام مِرْصَادًا ۳۰، سپاره توبه لَبِالْمِرْصَادِ - ۳۰ - پاره الفجر فِرْقَةٍ - ۱۱ - سپاره التوبه ۲ هر کله چې راء سَاکنه ماقبل هم ساکن او پر ریم حرف باندی زور وي لکه اَلْاَبْصَارِ ۱۳ پاره ص -

۱۱ کله چې راء ساکنه ماقبل هم ساکن او پر ریم حرف باندی پیښ وي لکه اَلنَّاقُوْرِ ۲۹ پاره المدثر -

۱۲ هغه راء چې وقف بالروم و ربانديوي لکه قَدِيْرٌ ۲۹ سپاره الملك

## ترقیق ۲

د راء د باریک ویلو دا لاندی اوه ۷ صورتونه دي -

(۱) تر راء لاندی چې زیر وي لکه لِتَشْرِكَ ۲ سپاره العنکبوت -

(۲) پر راء شدده چې زیر وي لکه مِنَ الرِّيْحِ ۱۵ سپاره بني اسرائيل

(۳) هر کله چې راساکنه او ماقبل یه زیر وي لکه فَكَّرَ ۲۹ سپاره المدثر

(۴) راء چې ساکنه او ماقبل یه ساکن او ماقبل یه زیر وي لکه بِالسِّحْرِ ۱۱

(۵) راء چې ساکنه او ماقبل یه یاء وي لکه وَالْعِيْرَ ۱۳ سپاره یوسف

---

د وقف بالروم تفصیل د وقف په بیان کې راځي اِنْ شَاءَ اللّٰه

له د داسې راء د باریک ویلو پاره دری شرطونه یاد لری - کسره به اصل وي عارضي به نه وي ۲ زیر به په دا غه کلمه کې چې راء ده په بله کلمه کې به نه وي ۳ وروسته تر راء به حرف استعلاء په داغه کلمه کې نه وي - که دا شرطونه پیدا نسوه نو را باریکه ویل کیږي او که نه وه نو که ویل کیږي -

له که چیری راء ساکنه وي او مخته یه یاء وي بیا د ماقبل د حرکت اعتبار نه کیږي -

کتبه احقر حافظ شاه ولی الله فهیم -

(۶) راءِ ممالہ یعنی هغه[1] راچې اماله ورباندې وکړل سي مَجْرٖىهَا

(۷) راء مرامه مکسوره هغه راچې وقف بالروْم ورباندې وکړل سي لکه عُقْبَى الدَّارِ - ۱۳ - سپاره ، الرعد ،

**مختلف فیه ۳**

دراء مختلف فیه دالاندې اوه حالتونه دي

(۱) مِصْرَ کومچې په قرآن مجید کې څلور ځایه راغلی دی - ۱ - په سورة یوسف کې مِن مِّصْرَ لِامْرَأَتِهٖ -

۲ په سورة الزخرف کې مُلْكُ مِصْرَ

۳ په سورة یوسف کې اُدْخُلُوا مِصْرَ

۴ په سورة یونس کې بِمِصْرَ بُیُوتًا

(۲) فَأَسْرِ کومچې دری ځایه دی

۱ فَأَسْرِ بِأَهْلِكَ ،، هود ،

۲ - فَأَسْرِ بِعِبَادِي ،، الدخان ،

۳ - فَأَسْرِ بِأَهْلِكَ ،، الحجر ،

(۳) اَنْ اَسْرِ کومچې دوه ځایه دي

۱ اَنْ اَسْرِ بِعِبَادِي ، طٰهٰ ،

۲ - اَنْ اَسْرِ بِعِبَادِي اِنَّکُم ، الشعراء ،

(۴) نُذُرِ کومچې په سورة القمر کې شپږ ځایه دی -

(۵) وَالَّیْلِ اِذَا یَسْرِ - سورة الفجر

(۶) اَلْجَوَارِ کومچې دری ځایه دی -

۱ وَلَهُ الْجَوَارِ - الرحمٰن ۲ اَلْجَوَارِ فِی الْبَحْرِ - شوریٰ ۳ اَلْجَوَارِ الْکُنَّسِ - تکویر ،

---

[1] په روایت حفص کې صرف په دا غه کلمه کې اماله ده او دی تلفظ داسې دی لکه تلفظ د کښتۍ د ټ کی ۱۲

[2] مِصْرَ کومچې په سورة بقره کې دی په دی کې هیڅ اختلاف نشته په دی کې وصلاً او وقفاً تفخیم دی ۱۲

⑦ عَيْنَ الْقِطْرِ - سورة سباءٍ - په وقف کی دوه[۲] وجهه دی ترقیق یه بهتر دی۔

دا تولـه هغه وجوه دی چی په وقف کی دواړه وجهی او تفخیم جائز دی په داسی کلموکی چی تفخیم او ترقیق دواړه جائز وی - په دوی کی صرف کلمه دکُلُّ فِرْقٍ - الشعراء - په وصل او په وقف کی تفخیم او ترقیق دی۔

## دَمِیمِ سَاکِن اَو مُشَدَّد قَاعِدی

میم که چیری ساکن وی په هغه کی غنه ضروری ده غنه پزی ته اواز وړلو ته ویل کیږی - دغنه کولو اندازه دیو[له] الف برابر ده لکه ثُمَّ - عَمَّ - لَمَّا او نور۔

د میم ساکن دری ۳ قاعدی دی ① ادغام ② اخفاء ③ اظهار۔

**اِدْغَام** د میم ساکن وروسته که چیری حرکت والا میم راسی نو هلته ادغام کیږی یعنی دواره میمونه یو کیږی او د مشدد د میم په مثال په ده کی غنه کیږی لکه عَلَیْهِمْ مُّؤْصَدَةٌ - اَنْتُمْ مُّدْهِنُوْنَ فِیْ قُلُوْبِهِمْ مَّرَضٌ - او نور۔

---

له دیو الف اندازه معلومولو طریقه دتجوید علماو وداسی بیان کړیده چی خلاصی گوتی په یو درمیانه اندازه سره بندی کړی او یابندی گوتی خلاصی کړی - او دا صرف یو اندازه احمل دار ومدار د مشاق استاذ شخص پر اوریدلو باندی ده ×

ودې ادغام ته ادغام صغیر مثلین ویل کیږي

**اخفاء ۲** د میم ساکن وروسته که چیری باء راسي هلته اخفاء سره د غنی کیږي - د دی اخفاء اداکولو طریقه دا ده چی د میم دا اداکولو په وخت کی دد واړو شونډو وچه حصه په ډیر نرمی سره یوځای سی او د غنی صفت د یو الف په اندازه د خیشوم څخه اداکړل سی او بیا د شوندانو د خلاصید و څخه مخکی دد واړو شونډو لنده حصه په سختی سره یوځای سی باء اداکړل سی - لکه عَلَيْكُمْ بِوَكِيلٍ، فَاحْكُمْ بَيْنَهُمْ، وَمَا هُمْ بِسُكَارَىٰ - دی ته اخفاءِ شفوی ویل کیږي.

**اظهار ۳** د میم ساکن وروسته د باء او میم څخه ماسوا[1] که چیری یو بل حرف راغلی نو هلته اظهار کیږي لکه، فِيكُمْ رَسُولًا، لَكُمْ دِينُكُمْ، عَلَيْكُمْ شَهِيدًا، او دي ته اظهار شفوی ویل کیږي -

---

[1] د باء او میم څخه ماسوا پاته ۲۶ شپږ ویشت حرفو کی اظهار شفوی کیږي او الف د دی وجهی څخه نه دی شمار کړی چی د ساکن حرف وروسته الف نه سی راتلای لهٰذا د میم ساکن وروسته هم الف نه سی راتلای -

---

د میم ساکن وروسته که چیری الف راسی بیا التقاء ساکنین راځی علی غیر حده او دا التقاء په کلام عرب کی جائز نه ده - فضل الحق حقانی غفرله

# دَ نون سَاکن او مشدد قاعدې

په نون مشدد کې غُنّه ضروري ده لکه اِنَّ، کُنَّا، ظَنَّ، مَنَّ، او نور داسې۔

دنون ساکن او تنوین څلور قاعدې دي۔

(۱) اظهار، (۲) ادغام، (۳) اقلاب، (۴) اخفاء،

نون ساکن هغه نون دی پرکوم چې څه حرکت نه وي یعنې، زور، زیر، پېښ، لکه مِنْ، عَنْ، اِنْ او نور۔

نون تنوین هغه نون ساکن زائد دی کوم چې دکلمې په آخر کې لاحقه کیږي او دا رنګه دي دَ دوه زوره، دوه زیره، او دوه پېښه په صورت کې کیږي لکه، رِزْقًا، کُتُبٌ، صَالِحٍ، او نور۔

## اِظْهَار[۱]

دا ظهار لغوي معنیٰ ده ښکاره ویل۔ د اظهار تعریف دا دی چې دخپل مخرجه څخه سره دټولو صفتو نو بیله غنه اداکیدل۔ لکه یَنْئَوْنَ، عَنْ اَمْرِیْ، مِنْهُ، مِنْ هَادٍ، او نور۔ او دې ته اظهار حلقي او حقیقي ویل کیږي۔

---

[۱] اظهار اصل دی ولې چې وقفاً او وصلاً اداکیږي۔ او دا اظهار دحروف حلقي محتاج نه دی مثلاً په عَنْ اَمْرِیْ کې که چیرې پر عَنْ باندې وقف وکړو هم اظهار کیږ او که وصل وکړو نو هم اِظْهَار کیږي۔ پرخلاف د ادغام اخفاء او اقلاب چې دا وصلاً کیږي او وقفاً نه کیږي۔

**ادغام** [۲] د ادغام لغوی معنیٰ ده اِدخال داخلیدل دي
تعریف - اول حرف په دوهم حرف کی داسی ننګه داخلیدل
چی دواړه سره یو ځای مشدد کړل سی۔

**قاعده** د نون ساکن او تنوین وروسته چی د حروف
یَرمُلُونَ څخه یو حرف راسی هلته ادغام کیږی۔

== ادغام پر دوه قسمه دی ==

(۱) ادغام مع الغنه ———————— (۲) ادغام بلاغنه

ل، ر، ادغام بیله غنی دی - او دیُومِنُ په څلورحرفه کی ادغام مع
الغنه کیږی - **شرط** د دی ادغام شرط دا دی چی په
دوو کلمو کی به وی یعنی نون ساکن به د اولی کلمی
په آخر کی او د یُومِنُ څلور حروفو څخه به یو حرف د دوهمی
کلمی په شروع کی وی - او که چیری نون ساکن او حروف
د یَرمُلُونَ په یوه کلمه کی وی بیا ادغام نه کیږی بلکه
اظهار کیږی لکه دُنیَا - قِنوَانٌ - صِنوَانٌ - بُنیَانٌ او دی ته
اظهار مطلق ویل کیږی۔

---

په دی کلما تو کی چی ادغام نه کیږی علامه شاطبیؒ والیٔ خوف اشتباهِه المضاعف اثقلاً که
چیری ادغام وسی بیا دا نه معلومیږی چی دا مضاعف دی او که په قاعده د یَرمُلون ادغام سوی دی۔
او که څوك وائی چی په غنه سره به سره جلا سی جواب دا دی چی د غنی احساس و هر
چا ته چی لیری وی نه معلومیږی ۲ احقر فضل الحق حقانی غفرله

# دَنون دَادغام مثالونه

مِنۡ لُغُوۡبٍ ، مِنۡ رَّحِيۡقٍ ، مَنۡ يَّقُوۡلُ ، مَنۡ نَّشَآءُ ، مِنۡ وَّلِيٍّ ، مِمَّنۡ مَّعَكَ ، خَيۡرًا يَّرَهٗ ، غَفُوۡرٌ رَّحِيۡمٌ ، قَمَرًا مُّنِيۡرًا ، لِيَوۡمٍ لَّا ، نُوۡحٍ وَّعَادٍ ، رَسُوۡلًا نَّبِيًّا - اونور -

**اقلاب ۲** داقلاب معنیٰ د بدلولو ده - ددی تعریف دادی چی نون په میم سره بدل سی سره ده غنی اداکړل سی -

**قاعده** داده چی دنون ساکن اوتنوین وروسته باء راسی په یوه کلمه کی وی اوکه په دوو کلمو کی وی - نوبه نون په میم سره بدل سی او په اخفاء سره دی ویل سی - لکه اَنۡبِيَآءَ ، مِنۡ بُطُوۡنِ ، قَوۡلًا بَلِيۡغًا ، بَصِيۡرًا بِالۡعِبَادِ او نور -

**اخفاء ۳** داخفاء لغوی معنیٰ ده پټول - اوتعریف یه دادی چی دادغام او اظهار په منځ کی ویل ددې قاعده داده چی کله چیری تر نون ساکن اوتنوین وروسته ددی پنځلس حروفو څخه یوحرف راسی نو هلته اخفاء کیږی[1]

---

[1] د اخفاء دپاره دعلامه جزوری دا شعر یاد کړی سه صف ذا ثنا کم جاد شخص قد سما دم طیبا زد فی تقی ضع ظالما - ددی شعر د هری کلمی اول حرف حرف داخفاء دی -

اود اخفاء حروف دادي. ت ث ج د ذ ر ز س ش ص ض
ط ظ ف ق ك.

دَ اِخفاء طريقه نون ساكن اوتنوين د مغه د مخرج څخه
جلاوله اود هغه آواز په خيشوم کښي ټ
كړه بيله تشديده داسي اداكړل سي چي نه ادغام سي او نه
اظهار دي ته اخفاء حقيقي ويل كيږي.

## دَ اِخْفَاءِ حَقِيقِي مِثَالُونَهْ

اَنْتُمْ - مِنْكُمْ - مَنْصُوْرًا - مَنْضُوْدٌ - اَنْفُسَكُمْ -

مِنْ جُوْعٍ - مِنْ ذَهَبٍ - مِنْ كِتَبٍ - مِنْ شَيْءٍ - مِنْ سَبِيْلٍ

غُلَامًا زَكِيًّا - خَلْقٍ جَدِيْدٍ - لَحْمًا طَرِيًّا - لِبَعْضٍ ظَهِيْرًا -

كَلِمَةً - اونور

النَّاشِر مَكْتَبَةُ الْقِرَاءَةِ وَالتَّجْوِيْد

كانسي رُود. كوئٹه. بلوچستان

# دَ اِدغام بیَان

دادغام لغوی معنیٰ ده یوشی په بل شی کی داخلول - اول ته مدغم او دوهم ته مدغم فیه ویل کیږی -

**دَ ادغام تعریف** مدغم په مدغم فیه کی داسی داخلول چی دواړه یو مشدد حرف سی[1] -

## دَ ادغام دُوه قسمونه دی

(۱) ادغام کبیر ............................ (۲) ادغام صغیر -

**ادغام کبیر** که چیری مدغم او مدغم فیه دواړه متحرک وی او مدغم ساکن کړل سی او په مدغم فیه کی ادغام سی نو دې ته ادغام کبیر وائی په روایت[2] حفص کی ډیر لږ یعنی صرف پنځه ځایه ادغام کبیر سوی دی - او کلمې[3] دا دی - تَأْمُرُوٓنِّیٓ اَتُحَاجُّوٓنِّی الانعام - مَكَّنِّی كهف - لَا تَاْمَنَّا یوسف - نِعِمَّا البقرة والنسآء دُوه ځایه -

---

[1] دادغام طریقه دا ده چی ژبه دمشدد حرف د پاره یوه پله پورته سی بیله څه ځنډه تلفظ وکړل سی - که چیری په منځ کی فصل راسی بیا ادغام صحیح نه دی -

[2] د امام ابو عمرؒ او امام یعقوب په قرائت کی ادغام کبیر ډیر وی -

[3] په څلورو کلمو کی دحفصؒ په نزد صرف ادغام دی لکن په لَا تَاْمَنَّا - کی ادغام سره د اشمام او اظهار سره دَ رَوم ضروری دی = ترجمه از احقر فضل الحق حقانی غفرله

**ادغام صغیر**[1] کہ چیری حرف مدغم ساکن او مدغم فیه متحرك وو نو دی ادغام ته ادغام صغیر وائی لکه قَدْ دَّخَلُوْا، د دی ادغام دا شرط دی چی مدغم به ساکن او مدغم فیه به متحرك وی۔

په اعتبار د مدغم او مدغم فیه ادغام پر دری قسمه دی۔

① مثلین ② متجانسین ③ متقاربین

---

او په اعتبار د کیفیت ادغام پر دوه قسمه دی۔

① ادغام تام ② ادغام ناقص

**ادغام تام** حرف مدغم په مدغم فیه کی داسی دننه داخلول چی د حرف مدغم هیڅ یو صفت پاته نه سی لکه، اِذْ ظَّلَمُوْا دی ته ادغام تام ویل کیږی۔

**اِدغام ناقص** حرف مدغم په مدغم فیه کی داسی داخلول چی د مدغم حرف یو صفت وروسته تر ادغام هم باقی پاته سی **لکه**

---

[1] اول حرف ته مدغم او په کوم حرف کی چی دا اول حرف مدغم کیږی هغه ته مدغم فیه ویل کیږی۔ کبیر ته کبیر په دی وائی چی کار ئی ډیر دی یعنی یو وار اول ساکن کول بیا ادغام کول او صغیر ته په دی صغیر وائی چی کار ئی لږ دی یعنی اول د مخه تر ادغام ساکن وی حرف ادغام کول غواړی ۱۲ **فضل الحق حقانی غفر له الباری**۔

لکہ مَن یَّقُوْلُ ۔ دی تہ ادغام ناقص وائی ۔

## دادِغامِ تفصیل

## مِثلین ۱

ادغام د داسی دوو حروفو چی مغہ په صفتونو او مخرجونو کی سره یو وی مغونه ادغام مثلین ویل کیږی ۔ مثلاً ب ب ۔ ت ت ۔ ث ث ۔ او نور داسی ۔ په ادغام مثلین ادغام صرف تام کیږی ناقص ۴ نه کیږی ۔

په مثلین کی دلحوار لس ۱۴ حروفو ادغام سوی دی دکوم چی مجموعه داده ۔ فَعِ وَکَلِمْ تَمُدْ نَبِذْ مُو ۔ د دی قسم ادغام ته ادغام صغیر مثلین ویل کیږی ۔

---

ع ۔ ولی چی کوم صفت د اول حرف دی مغہ د دویم حرف هم مغہ صفت دی ۱۲ فضل الحق حقانی

۱ ولی چی غنه صفت د نون مدغمه ده نه دیاء مشدد دی نو که چیری د نون صفت د غنی پاته نه سی بیا ادغام تام جوړیږی کوم چی په روایت حفص کی هیڅ وجود نه لری په قراء سبعه وو کی صرف خلف دی چی مغه په داسی ځایونو کی صرف ادغام تام کوی ۔ وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِالصَّوَابِ ۔ فضل الحق حقانی عفرله

# دَادغام مثلین مثالونه

همدارنگه که چیری حرف مدغم مده وو اومدغم فیه غیر مده وونو ادغام نه کیږی لکه۔ قَالُوا وَمَا۔ اوفِی یَوْمٍ۔ اونور۔

| ف | فَلَا یُسْرِفْ فِی الْقَتْلِ | ل | قُلْ لِعِبَادِی | د | قَدْ تَّخَلُوا | ی | یَا بُنَیَّ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ع | مَالَمْ تَسْتَطِعْ عَلَیْهِ صَبْرًا | م | اَلَیْکُمْ مُرْسَلُوْنَ | ب | اِذْهَبْ بِکِتَابِی | ر | وَاذْکُرْ رَبَّکَ |
| و | اٰوَوْا وَنَصَرُوْا | ت | کَانَتْ تَعْبُدُ | ن | مَنْ نَشَآءُ | | |
| ک | یُدْرِکْکُّمُ الْمَوْتُ | ہ | مَالِیَهْ هَلَکَ | ذ | اِذْ ذَهَبَ | | |

## ادغام مُتَجَانسین ۲

ددا سی دو وحروفو ادغام ته چی مخرج کی یو وی

لکن په صفتونو کی اختلاف وی متجانسین ویل کیږی مثلاً ت۔ط ،ث،د ، ذ ط اونور داسی۔
په متجانسین کی ادغام تام اوناقص دواړه کیږی۔ لکن دحروف حلقی ادغام په خپل هم جنسو کی نه کیږی لکه فَاصْفَحْ عَنْهُمْ او حروف شجریه هم مستثنٰی دی۔ لکه اشیاءُ هُمْ

---

۱ په مالیه کی د هاء سکته لکه سنبله اظهار او ادغام دواړه جائز دی ۱۲ کتبه احقر حافظ شاهولی الله فهیم

# د ادغام متجانسین مثالونه

| مدغم | مدغم فیه | | مدغم | مدغم فیه | |
|---|---|---|---|---|---|
| ت | د | اثقلت دّعوالله | د | ت | قد تّبین |
| ت | ط | وقالت طّائفة | ذ | ظ | اذ ظّلموا |
| ث | ذ | یلهث ذّالك | ب | م | ارکب مّعنا |

په دی ټولو مثالونو کی صرف ادغام تام کیږی۔ او په دالاندی کلمو کی د، ط، ادغام ناقص کیږی۔ لکه بسطتّ۔ احطتّ، مافرّطتّ، مافرّطتم۔

ولې چی دلته دادغام په وخت کی د، ط، صفت داستعلاء او اطباق باقی پاته کیږی۔

**متقاربین ۲۔** ادغام دداسی د دوو حروفو چی مخرجونه ئې سره نزدی وی یا د دوی په صفتونو کی اتحاد او یو والی وی متقاربین ورته ویل کیږی لکه ادغام د، ل، ن، ر، ق، ك، او نور۔ په متقاربینو کی هم ادغام تام او ناقص دواړه کیږی۔ لکن که چیری مدغم حرف حلقی وونو بیا ادغام قطعاً نه کیږی لکه، فسبّحه، همدارنګه که چیری اول حرف حلقی و او دوهم حرف غیر حلقی وُبیا هم ادغام نه کیږی لکه۔ ربنالاتزغ قلوبنا۔ همدارنګه دلام ادغام په نون کی

نه کیږی[1] مثلاً - بَل نَّطُنُكُمُ، جَعَلْنَا -

# د ادغام متقاربین مثالونه

(۱) دلام ادغام په، ر، کی لکه - قُل رَّبِّ - او د نون ادغام په ر، کی - مِن رَّبِّكُمُ - دا ادغام تام دی -

(۲) د نون ادغام په، واو، او - یا - کی ادغام ناقص کیږی[2] لکه - مِن وَّلِیٍّ - مَن یَّقُولُ -

(۳) د، ق، ادغام په، ك، کی تام او ناقص دواړه ډوله کیږی لکه، نَخْلُقكُّمْ، لیکن ادغام تام اولی دی -

(۴) ادغام د نون په میم[3] کی مختلف فیه دی - لکه، مِن مَّآءٍ، او نور -

---

[1] ادغام د تخفیف حاصلولو د پاره کیږی - او که چیری د ادغام څخه ثقل راځی بیا ادغام نه کیږی -

[2] یعنی په دی کی ادغام تام او ناقص دواړه جائز دی که چیری غنه د نون وبللی شی نو دا ادغام ناقص دی - او که غنه د میم وبللی شی بیا ادغام تام وی - لکن دا اختلاف صرف لفظی دی په ادا کی څه اختلاف نشته - د لته څه ادا باندی د ناقص او تام هیڅ اثر نه کیږی او په نورو کی ځایو نو کی د ادغام تام او ناقص پرادا باندی اثر کیږی لکه، لَئِنْ بَسَطتَّ، مَن یَّقُولُ، او نور -

[3] د ادغام ناقص په روایت حفص کی دی او رَنه په نورو قراء تونو کی ادغام تام هم کیږی لکه روایت د خلف ۱۲ فضل الحق حقانی -

**فائده** په کلمه دارکب معنا او یلهث ذالك، کی په طریقه دجزری ادغام او اظهار دواړه جائز دی لکن په طریقه دشاطبی صرف ادغام دی. همدارنګه یٰس وَالقرآن، نٓ وَالقلم، دجزری په نزد ادغام او اظهار دی. او دشاطبی په نزد صرف اظهار دی.

## دلام تعریف داظهار او ادغام قاعده

الف او لام دتعریف که چیری پر حروف شمسیه[1] وو باندی داخل سو نو هلته ادغام کیږی. حروف شمسیه څوارلس[14] دی

## دادغام مثالونه

| ت | التائبون | ز | الزیتون | ط | الطیبون |
|---|---|---|---|---|---|
| ث | الثلث | س | الساجدون | ظ | الظالمون |
| د | الدار | ش | الشجرة | ل | اللعنون |
| ذ | الذکر | ص | الصابرون | ن | النار |
| ر | الرحمٰن | ض | الضالون | | |

[1] دی حروفو ته شمسیه له دی سببه ویل کیږی چی دلمر په راختلو سره دستورو رڼا دلمر په روښنائی سره ورکیږی

همدارنګه په حروف شمسیه وو کی لام تعریف غائبیږی

لام تعریف دستورو په مرتبه کی دی او حروف دلمر په مرتبه کی دی.

لام تعریف کہ چیری پر حروف قمریہ وو باندی داخل سو نو
هلته اظهار کیږی۔ حروف قمریه څوارلس[۱] دی چی
مجموعه یې دهٔ اِبغ حجک وخف عقیمه۔

## دا اظهار مثالونه

| ء | الأرض | ك | الكوثر | ق | القمر |
|---|---|---|---|---|---|
| ب | البرق | و | الواقعة | ی | اليوم |
| غ | الغيب | خ | الخير | م | المستقيم |
| ح | الحمير | ف | الفجر | ه | الهدى |
| ج | الجار | ع | العسر | | |

او په، فَالْتَقَطَهُ آلُ فِرْعَوْنَ، او، فَالْتَقَمَهُ الْحُوتُ،
کی چی کوم لام دی دا لام تعریف نه دی بلکه دا لام
فعل دی ددی سببه دلته صرف اظهار کیږی۔

---

۱ حروف قمریه ووته په دې قمریه ویل کیږی چی لکه څرنګه چی
دسپوږمی یه وجود سره ستوری نه ورکیږی بلکه موجودی
وی۔ همدارنګه حروف قمریه دلام تعریف څخه د وروسته
راتللو په وجه سره نه مدغمه کیږی بلکه خپل ذات سره پاته وی۔ ۱۲

ترجمه از احقر فضل الحق حقانی غفرله۔

# دَهمزه دَقواعِدُو په بيان کی

همزه پر دوه قسمه دی - ① همزه وصلی ② همزه قطعی

**همزه وَصلی ۱** همزه وصلی داسی همزه ده چی په وسط کی دکلام حذف کیږی لکه رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ په اصل کی رَبِّ اَلْعٰلَمِيْنَ وو وَصلاً همزه وصل حذف سوه۔

**همزه قطعی ۲** داسی همزه چی په وسط کی دکلام نه حذف کیږی مغه ته همزه قطعی ویل کیږی لکه، فَلَآ اُقْسِمُ کی د اُقْسِمُ، همزه قطعی ده له دی سَببه په وسط کلام حَذف نه سوه۔

# دهمزه څلورقاعدې دي

① تحقیق ② تسهیل ③ ابدال ④ حذف

**تحقیق ۱** همزه دخپله مخرجه څخه سره دټولو صفتونو سره اداکولو ته تحقیق ویل کیږی ءَاَنْتُمْ، ءَاِنَّكَ، ءَاُنْزِلَ، اونور۔

**تسهیل ۲** همزه دحروف مده او همزه په منځ کی ویلو ته تسهیل ویل کیږی تسهیل صرف مغه وخت کیږی کله چی دوی همزی متصلی یوځای سی۔

# تسهیل پر دوه قسمه دی

الف۔ تسهیل وجوبی که چیری دوه همزګان په یوه کلمه کی دا رنګه جمع سی چی دواړه قطعی متحرك وی نو هغه ښه په تحقیق سره ویل کیږی لکه۔ ءَاَسْلَمْتُمْ، ءَاَنْذَرْتَهُمْ، ءَاُشْهِدُوْا، لکن یوه کلمه مستثنیٰ ده ءَاَعْجَمِیٌّ، سورة حم سجده،

ب۔ تسهیل جوازی که چیری دوه همزه په یوه کلمه کی داسی سره یوځای سی چی اوله همزه قطعی مفتوحه وی۔ او دوهمه همزه وصل مفتوحه وی نو په دوهمه همزه کی تسهیل جائز دی او دے ته تسهیل جوازی ویل کیږی۔ په قرآن مجید کی صرف شپږ کلمی داسی دی چی په هغو کی تسهیل جوازی کیږی مثلاً ءَآللّٰهُ[1]۔ ءَآلذَّكَرَيْنِ[2]۔ ءَآلْئٰنَ[3]۔

---

[1] دا دوه ځایه دی یو په سورة یونس کی او دوهم په سورة النمل کی۔

[2] دا کلمه دوه ځایه په سورة الانعام کی ده

[3] دوه ځایه په سورة یونس کی ۔ په دی شپږو کلمو کی د تسهیل په وخت کی ابدال نه کیږی ولی چی د ابدال په وخت کی مد فرعی جوړیږی چی بیان به ئی راسی انشاء الله

# د همزه قطعی شعراو مثالونه

که ته غواړی چی همزه کی نشانی
درپیاد که دا قطعی په آسانی

اِنِّیْ اَعْلَمُ

دا افعال او تکلم همزه قطعی ده
همزه د جمع تعجب هم بنائی

نَحْنُ اَنْصَارُ اللّٰهِ ما اَضْرَبَہٗ اِنَّ ـ اَنَّ احمد

دا اعلامو او اعجامو همزه یاد که
نه په درج کی حذف کیږی دا قطعی

ابراهیم

اَتَعْجَبِیْنَ

استفهام سره اته قسمه پوره شو
په اشعارو چی بیان کړه حقانی

**ابدال ۳** ساکنه یا متحرکه همزه د ماقبل د حرکت موافق په حرف علت سره بدلولو ته ابدال ویل کیږی لکه۔ اللّٰهُ چی په اصل کی ءَ اَللّٰهُ وو۔ اٰمَنُوا چی په اصل کی ءَ اَمَنُوا وو۔

## اِبدال پر دوه قسمه دی

① ابدال وجوبی۔ ⟵⟶ ② ابدال جوازی۔

**اِبدال وُجوبی ۱** که چیری دوی همزی په یوه کلمه کی دا رنګه جمع سی چی اوله همزه متحرکه او دوهمه ساکنه وی۔ نو د دوهمی همزی په موافق سره د حرکت د ماقبل بدلول واجب دی۔ او همدی ابدال وجوبی ویل کیږی۔ مثلاً، اٰمَنُوا، اِیمَانًا، چی په اصل کی اَءْمَنُوا، او، اِءْمَانًا وو۔

**یوه همزه ساکنه** که چیری یوه همزه ساکنه د کلمی په شروع کی وی نو په دی کلمی سره د شروع د پاره همزهٔ وصلی را وړل کیږی او دا ساکنه همزه په موافق حرکت د ماقبل په حرف علت سره بدلیږی لکه، فِی السَّمٰوٰتِ، اِیتُونِی، چی په وصل کی فِی السَّمٰوٰتِ اِءْتُونِی ویل کیږی۔ د دی قسم همزه ساکنه مفرده ابدال صرف د کلمو د شروع په وخت کی کیږی او په وصل کی ابدال نه کیږی۔ او همزه وصلی هم په وسط کلام کی

حذف کیږی۔ هغه ته هم ابدال وجوبی ویل کیږی۔

**ب۔ ابدال جوازی** که چیری په یوه کلمه دا رنګه دوه همزی سره یوځای سی چی اوله همزه مفتوحه قطعی وی او دوهمه همزه وصلی مفتوح وی۔ نو د دوهمی همزی په الف سره بدلول جائز دی۔ له دی کبله ورته ابدال جوازی ویل کیږی۔ ابدال جوازی صرف په شپږو قرآنی کلماتو کی دی۔ ءآالله۔ ءآالذکرین۔ ءآلئن۔

**حذف ۴** که چیری دوه همزی په یوه کلمه کی دا رنګه جمع وی چی اوله همزه قطعی مفتوح وی او دوهمه همزه وصلی مکسوره وی نو دوهمی همزی لیری کولو ته حذف ویل کیږی۔ په ټوله قرآن مجید کی د دی ذکر سوی قاعدی شپږ کلمی دی۔ په کوموکی چی د حذف قاعده پیدا سوی ده لکه۔

(۱) اَستَکبَرتَ، ص، چی په اصل کی ءَاستَکبَرتَ وو۔
(۲) اَفتَرٰی، سباء، چی په اصل کی ءَافتَرٰی وو۔
(۳) اَتَّخَذنٰهُم، ص، چی په اصل کی ءَاتَّخَذنٰهُم وو۔
(۴) اَطَّلَعَ، صف، چی په اصل کی ءَاطَّلَعَ وو۔
(۵) اَصطَفٰی، صف، چی په اصل کی ءَاصطَفٰی وو۔
(۶) اَستَغفَرتَ، منٰفقون، چی په اصل کی ءَاستَغفَرتَ وو۔

# کلمه پر دری قسمه ده

## (۱) اسم (۲) فعل (۳) حرف

(۱) اسم - اسم پر دو قسمه دی -
الف - اسمائے مصادر، ب - اسمائے غیر مصادر ره -

**اسمائے مصادر ۱** مصدر هغه اسم دی دکوم
څخه چی اسمونه او فعلونه
جوړیږي - او د هغه مصدر علامه دا ده چی ده د فارسی
ترجمی په آخرکی - تَن - یا دَن - راځی لکه - انتباه،
خبردار کردن - اِمتحان - ازمایش کردن - او نور -
د دوی همزه همیشه مکسوره وی -

**ب اسمائے غیر مصادر** دا هغه اسمونه دی چی مصدر
نه وی یعنی څه شی ور
څخه جوړیږي نه د دوی همز همیشه وصلی او مکسوره
وی دا سی اسمونه ټوله لس دی چی په قرآن مجید کی صرف
اوه ذکر دي - اِبنٌ، ابنتٌ، اِمرَاۃٌ، اِمرُؤٌ، اِسمٌ، اِثنَینِ، اِثنَتَینِ -

**د فعل همزه ۲** د فعل همزه وصلی او مکسوره یا مضمومه
وی - او همزه قطعی مفتوحه وی -

**الف** که چیری د فعل پر دریم باندی کسره - یا فتحه
یا عارضی ضمه وه نو د فعل ابتدائی همزه همیشه

وصلي مكسوره وي مثلاً، اِضرب، اِقْرَأْ، اِتَّقُوا، اِصْبِرُوا، اونور۔

**ب** او که چيري د فعل دريم حرف باندې ضمه اصلي وي نو د فعل ابتدائي همزه وصلي مضمومه کيږي مثلاً۔ اُقْتُلُو۔ اُخْرُجُو۔ اُدْخُلُو۔ اُكْتُبُوا۔ اونور۔

**ج** د افعال د باب همزه قطعي وي او همدارنګه د مضارع واحد متکلم همزه قطعي وي لکه۔ اَنْصُرُ۔ اَضْرِبُ اَعْلَمُ۔ اَكْرِمُ۔ اَرْسِل۔ اونور۔

**یادونه** د دې قطعي همزه وو تفصيل مختصر مترجم په اشعارو کې بيان کړې۔

**حرف** د لا تعريف ماسوا نور د ټولو حروفو همزه قطعي وي مثلاً۔ اَوْ۔ اَمْ۔ اِنْ۔ اِنَّ۔ اَنَّ۔ اَلَا۔ اونور

د لام تعريف همزه هميشه وصلي او مفتوحه وي لکه۔ اَلنَّصِيرُ۔ اَلْحَدِيث اونور۔

## همزة الاعلام

په قرآن مجيد کې عجمي يعنې غير عربي نومونه ذکر سوي دي۔ د دوي په شروع کې چې کومه همزه ده هغه ته همزة الاعلام ويل کيږي۔ او دا همزه قطعي ده په وسط کې د کلام نه حذف کيږي لکه، اِبْرَاهِيمَ، اِسْمٰعِيلَ، اِسْحٰقَ۔ اِدْرِيسَ، اِلْيَاسَ۔ اِنْجِيلَ۔ اِسْرَائِيلَ، اِبْلِيسَ۔

# د مد بیان

د مد لغوی معنیٰ ده کشول او او زدول مد پر دوه قسمه دیٔ
(۱) مد اصلی (۲) مد فرعی

**مد اصلی ۱** هغه دی چی حروف مده د خپل ذاتی مقدار مطابق کش کړه سی او پر خه سبب باندی موقوف نه وی لکه۔ قَالَ، قِيْلَ، قُوْلُوْا۔ او نور۔

**مد فرعی ۲** حروف مده د خپل اصلی مقدار څخه زیات کشولو ته مد فرعی وائی او دا مد پر یوه سبب باندی موقوفه وی لکه۔ قَالُوْٓا اٰمَنَّا۔ شَآءَ۔ يَعْلَمُوْنَ۔ دَآبَّةٍ۔ او نور۔

و حروف مده او لین ته محل مد ویل کیږی۔ او همزه او سکون ته او تشدید ته سبب مد ویل کیږی۔

**د مد فرعی قسمونه** مد فرعی پر څلور قسمه دیٔ۔

(۱) مد واجب (۲) مد جائز (۳) مد لازم (۴) مد عارض۔

**مد واجب ۱** د حروف مده وروسته که همزه په دا غه کلمه کی وی په کوم کی چی حرف مد دی لکه۔ سَآءَ، سُوْٓءُ، سِيْٓءَ، او نور ده ته مد واجب او متصل ویل کیږی۔ ددی مقدار او اندازه توسط دیٔ۔

**مد جائز ۲** که چیری د حروف مده وروسته همزه په بله کلمه کی وی مثلاً، اِنِّیٓ اَعلَمُ، رَبَّنَآ اٰمَنَّا، قَالُوٓا اٰمَنَّا۔ اونور۔ دی ته مد جائز او مد منفصل هم ویل کیږی ددی مقدار هم توسط دیٔ۔

**مد لازم ۳** د مد لازم پنځهٔ قسمونه دی چی تفصیل یه دا دی۔

**الف مد لازم حرفی مخفف** هر کله چی د حروف مده وروسته په حروف مقطعاتو کی صرف سکون وی مثلاً، قٓ، صٓ، نٓ، او نور۔ ددی مقدار طول دیٔ۔

**باء۔ مد لازم حرفی مثقل** د حروف مده وروسته چی په حروف مقطعاتو کی تشدید وی مثلاً، الٓمٓ، الٓمٓرٰ، او نورو کی پر لام باندی ددی مقدار هم طول دیٔ۔

**ج۔ مد لازم کلمی مخفف** د حروف مده وروسته په کلمه قرآنی کی چی سکون اصلی وی لکه، آٰلْـٰٔنَ، ددی مقدار هم طول دی۔

**د۔ مد لازم کلمی مثقل** د حروف مده وروسته چی په کلمه قرآنی کی تشدید وی لکه، تَاْمُرُوٓنِّیٓ دَآبَّةٌ۔ ددی مقدار هم طول دی۔

**ھ۔ مد لازم لین** د حروف مده وروسته چی په حروف

مقطعاتو کی سکون وی لکه، عٓسٓقٓ، شورٰی، کٓهٰیٰعٓصٓ، مریم، پر عین باندی چی کوم مد دی دا مد لین دی او د دی مقدار هم طول دی۔

**مد عارض ۲** دا پر دوه قسمه دی۔

**الف مد عارض لین** د حروف لین وروسته چی په کلمه قرآنی کی سکون عارضی وی لکه، خَوْف، صَیْف، د دی مقدار طول، توسط، قصر دی لکن اَوْلیٰ قصر دی۔

**ب۔ مد عارض وقفی** د حروف مده وروسته په کلمه قرآنی کی چی سکون عارضی وی لکه۔ یَعْلَمُوْنَ، تُکَذِّبَانِ، الْمُسْلِمِیْنَ۔ د دی مقدار هم طول۔ توسط قصر دی۔ لکن طول اولیٰ دی۔

---

**حاشیه صفحه سابقه** ۱ د قرآن کریم د ۲۹ سورتو نو په شروع کی چی کوم حروف تهجی جلا جلا ویل کیږی هغو ته حروف مقطعات ویل کیږی۔ دا حروف ټول څوارلس ۱۴ دی چی مجموعه یې دا ده۔ مَنْ قَطَعَكَ صِلْهُ سَحِیْرًا۔ یا۔ نَقَصَ عَسَلُكُمْ حُوْطَاهِرٌ۔

۱ د طول مقدار د ۳ دری الفه۔ د توسط مقدار د دوه الفه۔ او په بل قول باندی د طول مقدار پنځه الفه او د توسط مقدار دری الفه۔ او دا مقدار د مد اصلی علاوه دی۔ او د قصر مقدار په دواړه قولو باندی یو الف دی۔

# دَاِجتماعِ سَاکنین بیَان

**تعریف** داجتماع ساکنین معنیٰ ده دَ دوو ساکنو یوځای والیٰ۔ دَ دووساکنو په یوه کلمه یا دووکلموکې یوځای کیدو ته اجتماع ساکنین ویل کیږي لکه۔ اَلْـٰٔنَ، یَعْلَمُوْنَهٗ، لَیْلَةُالْقَدْرِ۔ قَالُوالْـٰٔنَ، اونور۔

## دا پردوه قسمه دي

۱ اجتماع ساکنین علیٰ حده ⟵○⟶ ۲ اجتماع ساکنین علیٰ غیرحده۔

## اِجتماع سَاکنین علیٰ حَده ۱

دَ دووساکنو یوځای داسې جمع کیدل چې دواړه پرخپل حال باندې برقراره پاته سی اوپه دوي کې تغیراوتبدل ونه کړل سي۔ اواول ساکن حرف مدوي۔

نوکه چیرې دوه ساکنه په یوه کلمه کې دا رنګه جمع سوي وه چې اول ساکن حرف مده وي۔ اودوهم سکون اصلي وي۔ نودا اول ساکن کشوُوُ والیُو به ئي۔ لکه۔ اَلْـٰٔنَ، دَآبَّۃٍ۔ اونور۔

## اِجتماع سَاکنین علیٰ غیر حَده ۲

که چیرې دوه ساکنه په یوه کلمه کې دارنګه جمع سوي وه چې اول ساکن حرف مده اودوهم ساکن عارضي وو۔ نودا اول ساکن به په وقف کې په کشولو سره ویل جائزدي لکه

يُؤْمِنُونَ ، تُؤْمِنُونَ۔ اونور۔
که چیری دوه ساکنه په یوه کلمه کی دا رنگه جمع سوی وه
چی اول ساکن حرف غیر مده وو۔ او دوهم ساکن عارض وو
نو د وقف په حالت کی اول ساکن خپل پر حال باندی پاته
کیږی لکه، اَلْفَجْرْ، مِنْ کُلِّ اَمْرْ، اونور۔ په دی تغیر نه کیږی
۔ اوکه دوه ساکنه په دووکلموکی دا رنگه جمع وه چی دواړه
پر خپل حال باندی باقی نه سی پاته په هغوکی دی تبدل
او تغیر وکړل سی لکه، قالوالئن، امارتاتو، علیکم الصیام،
من الذین قالوا، اونور۔
ددی څلورصورتونه دی په دی کی تغیراوتبدل کیږی۔
① حذف کیدل ② پېښ ورکول ③ زوَر ورکول ④ زیروزکول۔

## حذف کیدل ۱

که چیری دوه ساکنه په دووکلمو
کی داسی یوځای سوی وه چی
اول ساکن حرف مدوو نودا اول ساکن به حذف کوو لکه
وَقَالَا الْحَمْدُ، قَالُوا الْئٰن، ذَاقَا الشَّجَرَةَ، فِی الْاَرْضِ۔ اونور۔

## ضمه ورکول ۲

که چیری دوه ساکنه په دووکلموکی
دا رنگه جمع سوی وه چی اول
ساکن میم دجمع وو یا واولین وو نو دا اول ساکن ته
ضمه ورکول کیږی لکه، عَلَیْکُمُ الصِّیَامُ، یُعَلِّمُهُمُ الْکِتٰبَ،
اٰتَوُا الزَّکٰوةَ ، عَصَوُا الرَّسُوْلَ، اونور۔

**زورورکول ۳** کہ چیری دوہ ساکنہ دا رنگہ جمع سوی وہ چی اول ساکن د مِن حرف جر نون وو یا د حروف مقطعاتو کی میم وو نو هغہ ساکن تہ زورورکول کیزی لکہ مِنَ اللہِ۔ الٓمٓ اللّٰہُ۔

دا سی ځای صرف پہ سورۃ آل عمران کښی دی۔

**زیرورکول ۴** کہ چیری دوہ ساکنہ پہ دوو کلموکی دا رنگہ جمع سی چی اول ساکن د مِن د نون او د میم جمع او واو لین علاوہ بل څہ حرف وی نو و اول ساکن تہ کسرہ ورکول کیزی لکہ۔ اَمِ اللّٰہُ الوَاحِدِ، اَنِ اصۡنَعِ الۡفُلۡكَ، قَدِيۡرُنِ الَّذِیۡ، او نور پہ دی کی نون تنوین هم داخل دی لکہ۔ بِزِیۡنَۃِ نِالۡکَوَاکِبِ، خَیۡرَانِ الۡوَصِیَّۃُ، خَبِیۡثَۃِ نِ اجۡتُثَّتۡ، طُوًی نِ اذۡهَبۡ۔

**نوټ**۔ د تنوین څخہ ابتداء کول قطعاً نا جائز دی۔

## د هاء ضمیر بیان

هاء پر دوہ قسمہ دہ ① هاء اصلیہ ② هاء ضمیر۔

**هاء اصلیہ ۱** هاء اصلیہ هغہ هاء تہ ویل کیزی کوم چی د نفس کلمی هاء وی یعنی د کلمی جزء وی۔ کہ چیری د هغی کلمی څخہ جلا کړل سی نو معنی خرابیزی لکہ۔ نَفَقَۃً کَثِیۡرًا، فَوَاکِہُ کَثِیۡرًا، لَئِنۡ لَّمۡ تَنۡتَہِ،

لِئِنۡ لَمۡ يَنۡتَهِ، غَيۡرَ مُتَشَابِهٍ، وَاِنَّهُ عَنِ الۡمُنۡكَرِ، او د لفظ اَللّٰهُ
هاء دا ذكر سوى تو لى هاء گانى اصلى دى۔

**هَاء زائده** هاءِ زائده هغى هاء ته ويل كيزى كوم
چى د نفسى كلمى نه وى هاء زائده پر
درى قسمه ده۔
الف هائے ضمير۔ با۔ هائے سكته۔ ج۔ هاء مدوره

**الف هائے ضمير** كوم چى د كلمى په آخر كى په مثال
د كاف لاحقه كيزى هغى ته
هاء ضمير ويل كيزى۔ او د هاء مكسوره او مضمومه وى

**هَاء ضمير مكسوره** كه چيرى د هاء ضمير څخه
مخته زير يا ياء ساكنه وى نو
هغه هاء ضمير مكسوره كيزى مثلاً، عَلَيۡهِ، بِهِ اللّٰهُ، لكن
د دى قاعدى څخه داخلو كلماتى مستثنى دى۔
(١) وَمَا اَنۡسَانِيۡهُ (٢) عَلَيۡهُ اللّٰهَ (٣) اَرۡجِهۡ (٤) فَاَلۡقِهۡ۔
**نوٹ**۔ دا دوه ځايه مضمومه او دوه ځايه ساكنه ده۔

له وَمَا اَنۡسَانِيۡهُ، عَلَيۡهُ اللّٰه ـ په دى دوارو كلموكى هاء ضمير د قاعدى مطابق مكسوره
كيدل پكار دى ليكن اصل په هاء ضمير كى ضمه ده نو اتباعاً لِلۡاَصۡل د لته ضمه ويل كيزى۔
٢ه اَرۡجِهۡ۔ او، فَاَلۡقِهۡ، دا كلمى په اصل كى ارجى او فالقى دى او د وارى دا امر صيغى دى د اقاعده ده چى دامر
آخر حرف كه حرف علت وو نو په حالت د وقف كى هغه حرف علت غورځيږى د لته هم يا حذف سوى ده
او د هغى قائم مقام هاء راغلى څرنګه چى هاء حرف اصلى دى صرف په هغه كى اسكان راغئ۔

## هاءضمیر مضمومه

د هاء ضمیر څخه ماقبل که چیری فتحه ضمه یا دیاء ساکن څخه علاوه بل حرف ساکن وی نو هلته هاء ضمیر مضمومه کیږی مثلاً، لَهُ الْخَلْقُ، اسْمُهُ الْمَسِيحُ، اِنِّی لَكُمْ مِّنْهُ، لکن د دی قاعدی څخه یو لفظ مستثنی دی وَيَتَّقْهِ۔

## د هاءضمیر کشولو بیان

صله په لغت کی کشولو ته وائی

## د صله تعریف

هاء ضمیر دا رنګه کشولو چی د هغی د حرکت د کشولو څخه واو مده یا، یاء، مده پیدا سی۔

نو که هاءِ ضمیر د خپلی قاعدی موافق مضموم وه نو د صِله کولو څخه واو مد پیدا سی۔ او که هاءِ ضمیر مکسوره وه نو هلته د زیر کشولو څخه یاءِ مده پیدا سی لکه، لَهٗ ۔ بِهٖ۔

## د صله کولو قاعده

که چیری د هاءِ ضمیر ماقبل او مابعد دواړه متحرک وی نو په هاء ضمیر کی صِله کیږی۔ لکه۔ قَوْلُهٗ، اَلْقٰهَا اِلٰی مَرْيَمَ، اَمُرْبِهٖ جَنَّةً، مَالُهٗ وَمَا كَسَبَ، لکن د دی قاعدے څخه یوه کلمه مستثنی ده، يَرْضَهُ لَكُمْ په دی کی صله نه کیږی۔

---

[1] په یرضهُ لکم کی صله ونه کړل سوه د هغه وجه دا ده چی دا په اصل کی یرضاه، و او څخه لکه چی د اشرط واقع سو نو هغه الف حذف سو ولی چی یا ناقص دی۔ نو د اصل په وجه د الته که څه هم او س الف نسته صله نه کیږی۔

**د صله نه کولو قاعده** د هاء ضمیر مخته یا وروسته که چیری څه حرف ساکن وو یا ما بعد مشدد وو نو په هاءِ ضمیر کی صله نه کیږی لکه، مِنْهُ، لَهُ الدِّیْن، لَهُ الْمُلْكُ، مِنْهُ اٰیٰتٌ۔ او نور لکن د دی قاعدی څخه یوه کلمه مستثنیٰ ده فِیْهٖ مُهَانًا۔

**۲ هاء سکته** د کلمی د آخری حرکت د ښکاره کید و د پاره چی کومه هاء ده هغی ته هاء سکته ویل کیږی۔ هاء سکته وقفاً او وصلاً ساکنه وی۔ او د ا هاءِ سکته په قرآن شریف کی ۹ ځایه دی۔ لَمْ یَتَسَنَّهْ، فَبِهُدٰىهُمُ اقْتَدِهْ، کِتٰبِیَهْ، دوه ځایه۔ سُلْطٰنِیَهْ۔ دوه ځایه۔ مَالِیَهْ۔ مَاهِیَهْ۔ حِسَابِیَهْ۔

**هاء مدوره** د تانیث هغه تاءِ مدوره کومه چی په وقف کی په هاءِ ساکنه سره بدلیږی لکه د جَنَّةٌ څخه جَنَّهْ۔ د اٰیَةٌ څخه اٰیَهْ۔ پردی باندی روم او اشمام نه دی جائز۔

له پر هاءِ ضمیر باندی په روم او اشمام کی د قراء اختلاف دی۔ د بعضو په نزد روم او اشمام په هر حالت کی جائز دی۔

او د بعضو په نزد پر هاء ضمیر چی هر کله د دی څخه مخکی یاء مده یا واو مده نه وی یا ضمه او کسره نه وی نو هغه وخت وقف بالروم او وقف بالاشمام جائز دی۔

باقی په ټولو صورتو کی روم او اشمام جائز دی۔

# دَوقف بَیَان

دوقف لغوی معنیٰ ده دریدل او بندیدَل۔

| | |
|---|---|
| **دوقف تعریف** | دکلمه غیر موصوله پر آخر باندی ساه ماتوَل۔ |
| **دوقف قسمونه** | باب الوقف پر دوو حصو باندی تقسیم کید لای سی۔ |

الف ۔ وقف په لحاظ د موقوف علیه۔ با ۔ وقف په لحاظ د معنیٰ۔

## دوقف قسمونه په لحاظ د موقوف علیه

وقف په لحاظ د موقوف علیه پر څلور قسمه دیٔ۔

(۱) وقف بالاسکان (۲) وقف بالروم

(۳) وقف بالاشمام (۴) وقف بالابدال۔

**وقف بالاسکان** لکه چیری موقوف علیه حرف متحرك وونو د امتحرك حرف ساکنوَل او وقف کول ته وقف بالاسکان ویل کیږی

دا وقف پر درو سره حرکتو ۔ زیر ۔ دوه زیره ۔ زوَر ۔ دوه زوَره ۔ پیښ ۔ دوه پیښه باندی کید لای سی ۔ لکه یَعْلَمُوْنَ ۔ مَخْتُوْمٍ ۔ کَرِیْمِ ۔ او نور ۔

## ۲ وقف بالروم
پر کوم حرف چې وقف وسی دهغه حرف د حرکت دریمه حصه ښکاره کولو ته وقف بالروم ویل کیږی. دا صرف په دوو حرکتو، زیر، دوه زیره. پیښ اودوه پیښنه کې کیږی لکه، لِیَعْبُدُوْنِ ؕ شَکُوْرٌ ؕ اونور.

**تنبیه:** وقف بالروم صرف پر اصلی حرکت باندی کیږی پرعارضی باندی نه کیږی. لکه: أَنْذِرِالنَّاسَ" کی پر" أَنْذِرْ" باندی وقف بالروم نه کیږی ولی چه په " أَنْذِرْ کی" را"، په عارضی حرکت سره زیر لری.

## ۳ وقف بالاشمام
موقوف علیه حرف ساکن کول په شونډو سره د پیښ وطرفته اشاره کولو ته وقف بالاشمام ویل کیږی.
داوقف په پیښ یا دوو پیښنو کې کیږی لکه" نَسْتَعِیْنُ"، شَکُوْرٌ" باندی دوقف کولو په وخت کې شونډات کول جوړول او پیښ ته اشاره کول.

**تنبیه** دروم پشان په اشمام کې هم پرعارضی حرکت باندی اشمام نه کیږی. لکه: عَصَوُالرَّسُوْلَ کی چه څوک

پہ "عَصَوا" باندی وقف وکی پہ "وَاو" باندی اشمام نہ کیږی.

## ۴ وقف بالابدال:

موقوف علیہ حرف کہ چیری گول تاء یا دوه زورہ تنوین وی. نو گول تا پہ "ها"، سرہ او دوه زورہ تنوین پہ الف سرہ بدلیږی. چی ودی تہ وقف بالابدال ویل کیږی مثلاً، خَلِیْفَةً "ځخہ" خَلِیْفَہ، او، نِسَآءًا ځخہ نِسَآءَا. او نور.

## ب: اقسام دَوقف پہ لحاظ معنیٰ:

وقف پہ لحاظ دمعنیٰ پہ څلور قسمہ دی: ۱. وقف تام. ۲. وقف کافی. ۳. وقف حسن. ۴. وقف قبیح:

## ۱. وقف تام

کہ چیری دموقوف عَلیہ دمَا بعد سرہ لفظی معنوی تعلق نہ وو نو ودی تہ وقف تام ویل کیږی مثلاً دسورة بقره د ابتدا ځخہ تر "اَلْمُفْلِحُوْنَ"، پوری وقف کول وقف تام دی: ولی چہ دلتہ دمومنا نو بیان ختم سوی دی. او دکافرانو بیان شروع کیږی.

## ۲ وَقف کافِی

دموقوف عَلیه کړد ما بعدسره معنوي تعلق وي او لفظي تعلق نړوو دی تړو وقف کافی ویل کیږي مثلًا پړ "یُنفِقُونَ" او "یُوقِنُونَ". باندي وقف کول وقف کافي دی. ولې چې "یُنفِقُونَ" وروسته هم دمومنانو بیان جاري دی. دوقف تام او وقف کافي حکم دادی چه دما بعد څخه دی ابتدا وکړي.

## ۳ وقفِ حَسَن

که چیري دموقوف علیه د مابعدسره لفظي او معنوي دواړه تعلقونه وه. او دوقف کولو له سببه معنیٰ نه خرابیدل نودی ته وقف حسن ویل کیږي مثلًا پر "اَلحَمدُ لِلّٰهِ" باندي وقف کول.

## ۴ وقف قبیح

که چیري دموقوف علیه دمابعد سره تعلق لفظي او معنوي دواړه وه او دوقف کولو له سببه معنیٰ خرابیدل نودی وقف ته وقف قبیح ویل کیږي لکه: "اَلَم تَرَ کَیفَ". یا "یَآ اَیُّهَا الَّذِینَ اٰمَنُوا لَا تَقرَبُوا الصَّلٰوةَ" کی پر "کَیفَ" او پر "اَلصَّلٰوةَ" باندي وقف کول. دی ته وقف قبیح ویل

کیږی۔ په دی دواړو وقفو کی دوقف حسن او وقف قبیح[1] حکم دادی چی د ماقبل څخه به اعاده کوی وائی به ئي.

**یادونه:** وقف حسن که چیری پر ایت باندی وی نو به دما بعد څخه ابتدا کوو۔ او که چیری د ایت په مابین کی دوقف د معتبرو علامو څخه علامه نه وه نو بیا به دماقبل څخه اعاده کوي:

---

[1] دوقف قبیح څخه دمعنی غیر مراد لازمیږی ددی وجهی څخه اجتناب ورڅخه لازمی دی۔ دطالبانو داسانی دپاره یو څو مثالونه لیکل کیږی۔

| | |
|---|---|
| مَنْ يَّهْدِ اللّٰهُ فَهُوَ الْمُهْتَدِ وَمَنْ يُّضْلِلْ ۔ | باندی وقف۔ |
| فَاِنْ اَسْلَمُوْا فَقَدِ اهْتَدَوْا وَاِنْ تَوَلَّوْا | 〃 |
| لَئِنْ شَكَرْتُمْ لَاَزِيْدَنَّكُمْ وَلَئِنْ كَفَرْتُمْ | 〃 |
| اِنَّ الْاَبْرَارَ لَفِيْ نَعِيْمٍ وَّاِنَّ الْفُجَّارَ | 〃 |
| وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالْاِنْسَ | 〃 |
| فَبُهِتَ الَّذِيْ كَفَرَ وَاللّٰهُ | 〃 |
| لَا تَقْرَبُوا الصَّلٰوةَ ۔ | |

هر کلمه چی پر معنی باندی غور وکړل سی دا مثالونه په ذهن کی راځی۔

# دَ وقف په باره کی نور معلومات

دَ وقف د اقسامو پیژندلو وروسته په قرآن مجید کی د دی مطابوت وقف کول پکار دی۔ او که نور وی نو د دی علاماتو خیال کول پکار دی۔

۱۔ چی په هر ځای د ایت نښان ○ گول دائره یا دَ وقف د علاماتو څخه مثلاً ط، م، ج۔ لیکلی وی صرف هلته به وقف کوی۔ په دی وقف کی د اعادی قطعًا د اعادی ضرورت نشته بلکه د مخ ایت څخه به شروع کوی۔

۲۔ که چیری د ایت په منځ کی غیر مناسب ځای وقف وکی نو بیا د ما قبل څخه اعاده ضروری دَه۔

۳۔ په کوم ځای چی وقف وکړل سی هلته آواز او ساه ما تول پکار دی۔ د وقف په وخت کی اواز بندول او ساه نه اخستل عیب دی۔ د دے څخه ځان ساتل پکار دی۔

۴۔ وقف تابع د رسم الخط دی۔ په کوم ځای کی چی کلمه څرنګه لیکلی وی هلته هغسی وقف کول پکار دی مثلاً د "اَنَا" الف په وصل کی نه ویل کیږی لکن په وقف کی ویل کیږی۔ همدارنګه دارا تلونکی

قرآنی کلماتِ هم په دی قاعده کی داخلی دی۔

| | | | |
|---|---|---|---|
| اَلظُّنُوْنَا | سورۃ احزاب | لٰکِنَّاۡ | سورۃ کهف |
| اَلرَّسُوْلَا | ″ | اَنَا | هر ځای چی راسی |
| اَلسَّبِيْلَا | ″ | سَلٰسِلَا | سورۃ دهر |
| قَوَارِيْرَا | سورۃ دهر | | |

نوټ: په سَلٰسِلَا کی وقفاً دوه قرائته دی سَلٰسِلَا یعنی په الف سره۔ او سَلٰسِل یعنی د الف په حذف سره ویل ثابت دی۔

**یادونه**: په دی لاندی کلماتو کی چی کوم الف لیکلی دی هغه د متکلم ضمیر نه دی بلکه د نفس کلمی جزء دی۔ دد اسی کلماتو الف همیشه ویل کیږی او په هر حال کی مثلاً۔

| | | | |
|---|---|---|---|
| اَنَاسِیَّ | سورۃ الفرقان، | وَاَنَابُوْا | سورۃ الزمر |
| اَلْاَنَامِلَ | سورۃ آل عمران | جَآءَنَا | سورۃ ملک |
| مَنْ اَنَابَ | ″ | او نور د اسی | |

۵۔ لکه تا سو ته چی معلومه سوه چی وقف د رسم الخط تابع دی

ددی قاعدی څخه دالاندی کلماتِ مستثنیٰ دي
په دی کلماتو کی الف په هیڅ حال کی نه ویل کیږی

| | | | |
|---|---|---|---|
| اَو یَعۡفُوَاۡ | سورة بقره | لِیَبۡلُوَاۡ | سورة محمد |
| اَنۡ تَبُوۡءَاۡ | سورة مائده | نَبۡلُوَاۡ | 〃 |
| لِتَتۡلُوَاۡ | سورة رعد | ثَمُوۡدَاۡ | سورة هود فرقان |
| لَنۡ نَدۡعُوَاۡ | سورة کهف | قَوَارِیۡرَاۡ | سورة دهر |
| لِیَرۡبُوَاۡ | سورة روم | | |

٦- لکه څرنګه چي تاسو ته معلومه سوه چي وقف د رسم الخط تابع دی. نو بعض قرآنی داسی کلمی وی چي بعض حروف په محذوف دی. نو د دی کلمو حذف سوی حروف وقفًا او وصلًا محذوف ویل کیږی مثلًا. وَاِیَّایَ فَاتَّقُوۡنِ، په اصل کی "فَاتَّقُوۡنِی"، وو. همدارنګه یُؤۡتِ اللهُ. وَاخۡشَوۡنِ فَارۡهَبُوۡنِ، نُنۡجِ الۡمُؤۡمِنِیۡنَ. اِذَا یَسۡرِ
او په "فَمَا اٰتٰنِ یَ اللهُ" کی هم وقف د رسم تابع کیږی نو په "فَمَا اٰتٰنِ یَ" کی څرنګه چي یاءِ مفتوح ده. د دی وجهی څخه په دی کلمه کی د حفص په نزد دیا حذف او اثبات دواړه ثابت دي.

**تنبیه:** په قرآن مجید کی بعض ځایونه تنوین رسمًا لیکلی وي

ددی سببه دا تنوین په وقف کی هم پاتوی ۔ مثلاً ۔ وَكَاَيِّنْ چه په اصل کی کَاَيٍّ وو۔

۷۔ په قران مجید کی بعض ځایونه سکته وی۔ د سکتې مطلب دادی چی آواز بندکه بیله ساه کښلو لږ وَدریږه۔ او دا سکته په قران مجید کی څلور ځایه راغلی دَه۔ په روایت حفصؒ کی که څه هم په نورو روایاتو کی په کثرت سره راغلی ده۔

| عِوَجًا سکته قَيِّمًا | سورة کهف | مَنْ سکته رَاقٍ ه | سورة قیامه |
| --- | --- | --- | --- |
| مِنْ مَّرْقَدِنَا سکته هٰذَا | سورة یٰسین | بَلْ سکته رَانَ | سورة مطففین |

په بَلْ رَانَ او مِنْ مَّرْقَدِنَا کی ادغام هم جائز دی لکن د سکتی دوجهی ادغام نه کیږی۔ اوکه ادغام وکړل سی بیا سکته نه کیږی۔ دی ته سکته معنوی ویل کیږی۔

په قران مجید کی بعض کلمات داسی دی چی الف په کښی لیکلی دی او ویل کیږی نه مثلاً

| لَاْاِلَى اللّٰهِ تُحْشَرُوْنَ | سورة آل عمران | لَاْاِلَى الْجَحِيْمِ | سورة صٰفٰت |
| --- | --- | --- | --- |
| لَاْاَوْضَعُوْا | سورة توبه | لَاْاَنْتُمْ | سورة حشر |
| اَوْلَاْاَذْبَحَنَّهٗ | سورة نمل | اَفَاْئِنْ | سورة آل عمران |
| مَلَاْئِهٖ | سورة بقره | نَبَاْئِ | سورة الانعام |

په قرآن مجید کې څلور کلمات داسې دي چې په صاد سره لیکلې دي مګر په صاد باندې یو کشنۍ سین هم لیکلې وي مثلاً

| يَقْبِضُ وَيَبْصُۜطُ | سورة بقره | اَمْ هُمُ الْمُصَۜيْطِرُوْنَ | سوره طور |
|---|---|---|---|
| فِي الْخَلْقِ بَصْۜطَةً | سورة اعراف | بِمُصَۜيْطِرٍ | سورة غاشيه |

د دې قاعده داده چې په اولو دوؤ کلمو کې خالص سین دی. په دریمه کې د صاد او سین اختیار دی څلور مه صرف په صاد سره ده.

په سورة یوسف کې دی،، وَلَيَكُوْنًا مِّنَ الصّٰغِرِيْنَ. او په سورة علق کې. لَنَسْفَعًا بِالنَّاصِيَةِ. نو هر کله چې پر لیکونا او، لنسفعا باندې وقف وکړل شي نود قاعدې مطابق به دوه زوره په الف سره بدلوو. ولې چې د اتنوین په اصل کې نون ساکنه دی. وقف د رسم په اعتبار سره کیږي د اصل په اعتبار سره نه کیږي.

## د حضرت حفص سند

ابو عمرو حفص بن سلیمان کوفي د حضرت ابوبکر عاصم بن ابي النجود څخه قرأة حاصل کړې دی. امام عاصم کوفي تابعي د ابو عبد الرحمن

عبد الله بن حبیب بن ربیعه سلمی زنا بینا، او ابو مریم
زر بن حبیش بن مباشه اسدی. او ابو عمر سعد بن
الیاس شیبانی کوفی څخه قرائت حاصل کړی.
مذکوره دری سره حضرات د کبار تابعینو څخه دي.
دا دری سره حضراتو د حضرت عثمان غنی رضی الله عنه او
حضرت علی رضی الله عنه حضرت عبد الله بن مسعود رضی
الله عنه او حضرت ابی بن کعب او حضرت زید بن ثابت
رضی الله عنه او حضرت حارث بن حسان رضی الله عنه څخه
قراءت حاصل کړی دی.
دا ټولو حضراتو بیا د حضرت محمد رسول الله صلی الله علیه
وسلم څخه قراءت حاصل کړی دی.
د روایت حفص اکثره او ضروری قاعدی په دی رساله
کی لیکل سوی دي. باقی علم القراءة. علم رسم الخط
او علم اوقاف باندی به ان شاء الله مستقلی رسالی ولیکو.
الله تعالی دی توفیق را کړی. او دا رساله دی خدای
دا حقر دپاره ذریعه د نجات وګرځوی.

العبد الضعیف
محمد ادریس العاصم
فاضل مدینه یونیورسټی

# قرآنی معلومات

## دَ قرآن مَجید تعریف

قرآن مجید هغه کلام معجزدی کوم چې د حضرت جبرئیل علیه السلام په واسطه پر حضرت محمد صلی الله علیه وسلم باندی نازل کړل سوی دئ۔

دکوم چې تلاوت عبادت دی۔ کوم چې د کریم ﷺ نه خخه په تواتر سره منقول دی۔ اود کوم چې د حفاظت ذمه واری پخپله حق تعالی اخستی دَه۔

قرآن مجید متأخرینو دیرشو ورځو موافق په دیرشو سپارو باندی تقسیم کړی دی۔ په قرآن مجید کی ټوله سورتونه ۱۱۴ دی۔ په قرآن کریم دا ایتونو په اړه دا اهل کوفه، اهل شام اهل مصر، اهل مکه، اهل مدینه۔ اختلاف دی[1]۔ خود جمهورو په نزد په قرآن مجید کی ۶۶۶۶ ایاتونه دی۔ دقرآن کریم کلمات ۸۶۴۳۰ دی۔ اودحروفو په اړه هم اختلاف دی[2] د حضرت عبدالله بن مسعود رضه په نزد دقرآن حروف ۳۲۲۶۷۰ دی ۵۵۸ رکوع دی۔

[1] دری اختلاف مطلب دانه دی چې یوه ډله بعض ایتونه قرآن بولی او بعض یه نه بولی۔ بلکه اختلاف داسی دی چې پر کوم ځای نبی علیه السلام وقف کړی وی دلعضو په نزد هغه ایت شمیری۔ او دبعضو په نزد که څیری پر دوو ایتو باندی هم وقف نه وی ثابت هغه دادواړه یو ایت بولی: ۱۲

[2] دری اختلاف مطلب دا دی چې لعضی مشدد حرف یو بولی او لعضی یه دوه حرفه شمیری ۱۲


حکم ہمزہ
حذف
ابدال
تسہیل
تحقیق
ہمزہ
اصلی
زائدہ
قطعی
وصلی
ہمزتین
ہمزتین
متحرکتین
۱۔متحرک وصلی
۲۔ساکن قطعی
۱۔قطعی مفتوح
۲۔وصلی مکسور
اَسْتَکْبَرْتَ
فعل

# په مختلفو اعتبارو سره د قرآن مجید نصف

د حروفو په اعتبار سره د قرآن مجید نصف د سورة کهف د نُکرًا پر نون دی. د کلما تو په اعتبار سره د سُورت حج د وَالجُلُودُ پر دال باندی دی.
د آیتو په اعتبار سره د سُورة شعرا پر یَاْفِکُوْنَ باندی. او د سوَرتو په اعتبار سره د سورَة حدید باندی د قرآن مجید نصف دی. او د رکوعا تو په اعتبار سره د قرآن کریم نصف د سورة حج پر پنځمه رکوع باندی.

## د تلاوت عیبُونه

| اسم | تعریف | حکم |
|---|---|---|
| ترعید | په مدونو او حرکتو کی آواز ښورول ریږدول | مکروه |
| تنفیش | حرکتونه پوره پوره نه اداکول | مکروه |
| تعجیل | حروف داسی ژر ژر ویل چی خولهٔ نه په پوهیږی | حرام |
| تطنین | هر ځای غُنه کول. د دی بل نوم صرصرادی | حرام |
| تطویل | په مدونو او حرکتو کی آواز تر ځایه حد زیات کشول | مکروه |

| | | |
|---|---|---|
| ہمہمہ | حروف مخفف ویل | حرام |
| زمزمہ | قرآن کریم د غزلو رنگہ ویل کہ د تجوید سرہ وی | مکروہ |
| ترعید | قرآن کریم د غزلو پہ لهجہ ویل بغیر تجوید | حرام |
| تعویق | د کلام پہ وسط کی وقف کول او د مابعد نہ شروع کول | حرام |
| تمضیع | حروف واضح نہ ویل | مکروہ |

خدای لرہ دی حمد وی چی توفیق ئی د ترجمہ کولو راکړہ۔ ټولو ناشرینو ناظرینو تہ دی معلومہ وی چی د دی کتاب د ترجمی، کتابت، طباعت پہ ھر لوی او کشنی سائز کی زمونږ سرہ محفوظ دی هیڅوک حق د طبع نہ لری۔ سرہ هر چا چہ زمونږ خواتہ پہ بد نظر کتلی دی۔ مونږ پہ دیر یلوار د هغوی سترگی را ایستلی دی: والسلام علیکم ورحمۃ اللہ وبرکاتہ


ترجمہ وتشریح

احقر العباد فضل الحق حقانی

مدرس شعبہ تجوید وقراءات جامعہ تجوید القرآن کوئٹہ

الناشر

مکتبۃ القراءۃ والتجوید

کانسی روڈ کوئٹہ بلوچستان


پروپرائٹر شمس الحق

